

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# د اسلامي ښوونې او روزنې لارښود

## دریم ټولګی




د چاپ کال: ۱۳۹۳هـ. ش.

د اسلامي ښوونې او روزنې

لارښود

دریم ټولګی





moe.curriculum@gmail.com



**د پوهنې وزارت**

**د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو**

**د روزنې معینیت**

**د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي**

**کتابونو د تالیف لوی ریاست**

# د ښوونکي کتاب

# د اسلامي ښوونې او روزنې د تدریس لارښود

# دریم ټولګی

**د چاپ کال: ۱۳۹۶هـ. ش.**



**ليکوالان**

– د سرمؤلف مرستيال ګل آقا «شائق» د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د رياست علمي غړی.

**علمي او مسلکي ايډيټ:**

– محمد آصف کوچی

**د څارنې کميټه:**

– دکتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب او د ښوونکو د روزنې معين

– دکتور شير علي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې مسؤول

– سرمؤلف عبدالظاهر ګلستاني د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رئيس.

**طرح او ډيزاين:**

– عنايت الله غفاري

ـ فيض محمد فياض





## ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پامیریان، نورستانیان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ایماق، هم پشه یان

دا هیواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سینه کې د آسیا به — لکه زړه وي جاویدان

نوم د حق مودی رهبر — وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**ګرانو استادانو او ښوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې چمتو کېږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم د وخت له غوښتنو سره سم علمي او رغنده پراختیا ومومي. البته نه ښایي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظریو او هیلو تابع شي.

د ښوونکی د لارښود دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې بنسټ چمتو اوترتیب شوی دی. د تدریس د نویو میتودونو له مخې فعالیتونه او معلوماتي مواد په کې ورزیات شوي دي چې په ډاډ سره به د زده‌کړې په بهیر کې د زده‌کوونکو د فعال ساتلو لپاره ګټور او اغېزمن وي.

هیله من یم د دې کتاب منځپانګه، چې د فعالې زده‌کړې د میتودونو د کارولو له لارې تالیف او چمتو شوی، ستاسو درنـــو استادانو د ګټې وړ وګرځي. له فرصت څخه په استفادې د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه غوښتنه کېږي د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې مرسته وکړي چې په دې توګه د پوهنې د نظام موخې او هیلې ترسره شي او ځوان نسل او هېواد ته ښې پایلې او بریاوې ور په برخه کړي.

زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او دروند مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي، چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو او ارزښـــتونو، د ټـــولنې د څرګندو اړتیاوو، ملي ګټو او وطنپالنې له روحیې او د ساینس او تکنالوژۍ له نوو علمي معیارونو سره سم پراختیا ومومي.

ددې سترې ملي موخې د تر لاسه کولو لپاره د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښـــوونې او روزنـــې لـــه پوهـــانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم، چې د خپلو نظریو او رغنده ګټورو وړاندیزونو له لار ې زموږ له مؤلفانو سره د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه، چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې برخه اخیستې او همدارنګه له ملي او نړیوالو درنو موسسو او نورو ملګرو هېوادونو څخه، چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي او د ښوونکي د لارښود کتابونو په چاپ او وېش کې یې مادي یا معنوي مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم او د لا نورو مرستو هیله یې لرم.

ومن الله التوفیق

دکتور اسدالله حنیف بلخی

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر



# لړلیک

**لوست........................................................................مخ**

## لومړی: لوست

## عنوان: مفصل ایمان

**مخ: ۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې هجاء کړی شي.
- مفصل ایمان وپیژني.
- وپوهېږي چې مفصل ایمان څو مومن به شیان رانغښتي دي.
- مؤمن به شیان په عربي وویلی شي (آمنت بالله وملائکته وکتبه.....).

**د ځېنو کلمو معناوې:**

**۱ــ** مفصل ایمان: بشپړ ایمان، تفصیلي ایمان.

**۲ــ** قضاء: حکم او فیصله...

**۳ــ** قدر: اندازه د هر خیر اوشر.

**اړینه پوهه:**

ایمان په لغت کې باور او تصدیق ته وایي، او د عقائدو په اصطلاح کې ایمان په مومن به شیانو (آمنت بالله....) په ژبه اقرار او په زړه تصدیق ته ویل کېږي، ایمان ژبني اقرار او قلبي تصدیق دواړو ته شامليږي. او یوازې د ژبې اقرار کافي نه دی، ځکه که یوازې د ژبې اقرار ایمان ګڼل کېدلای نو په هغه صورت کې به منافقان هم مسلمان ګڼل کېدل.

نتیجه دا شوه چې ایمان دوه رکنه لري: په ژبه اقرار او په زړه تصدیق خو په زړه تصدیق د ایمان مهم او غوره رکن دی او حسن لذاته دی ځکه په هیڅ حالت او هیڅ وخت کې له مؤمن څخه نه ساقط کېږي.

اما د ژبې اقرار حسن لغیره دی، ځکه د زور او اکراه په وخت کې له مؤمن څخه ساقطېږي.

خو که زړه یې په ایمان مطمئن او ډاډه وي نو بیا یې ایمان ته کوم زیان نه رسي. ځکه الله فرمایي: (مَن كَفَرَ بِاللّهِ مِن بَعْدِ إيمَانِهِ إِلاَّ مَنْ أُكْرِهَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالإِيمَانِ){النحل ـ ۱۰۶}.

ژباړه: څوک چې له ایمان راوړلو وروسته کافر شي (هغه که) مجبور کړای شوی وي او زړه یې په ایمان ډاډه وي (نو بیا خو خیر دی).

اما اعمال د ایمان رکن او جزء نه دي، ځکه ډیر ځلې د عذر له امله عمل د انسان څخه ساقطیږي، حال داچې ایمان هیڅکله ورڅخه نه ساقطیږي. لکه د حیض او نفاس په مهال د ښځې څخه لمونځ او روژه، خو د روژې بیا قضایي راوړل حتمي دي، نه د لمانځه.

هو! د عوامو لپاره اجمالي ایمان کفایت کوي هغه داچې باور ولري چې حضرت محمدﷺ د الله پیغمبر دی او څه یې چې د الله له لوري راوړي، هغه ټول حق دي، او بل داچې د دین له ټولو ضروري او بدیهي مسئلو څخه خبر وي لکه د لمانځه فرضیت، روژه، زکوة او حج. همدارنګه د قمار او شرابو حرمت، زنا او داسې نور.

دومره خبره هم باید مو په یاد وي چې ایمان کموالی او زیاتوالی نه مني اما ضعف او قوت پکې راځي.

او ایمان په شپږو شیانو مشتمل دی: هغه داچې ایمان ولرو په الله، د الله په ملایکو، د الله په کتابونو، د الله په پیغمبرانو او په آخره ورځ او په قضا او قدر باندې.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ښاغلی ښوونکی له سلام اچولو، روغبړ او احوال پوښتنې څخه وروسته زده کوونکو ته د نوي ټولګي (دریم ټولګي ته) د راتلو مبارکي وایي. | د سلام ځواب ورکوي. |
| | او خپل ځان ورپیژني او بیا د حاضرۍ اخستلو په ترځ کې د دوی د نومونو سره ځان آشنا کوي او زده کوونکو ته د خپل اړوند مضمون (اسلامي ښوونې او روزنې) په هکله مفصل معلومات ورکوي او په ټول کتاب یوه روښنایي اچوي. او دوی خپلو لوستونو او دندو ته متوجه کوي او تشویقوي یې څو په خپلو درسونو کې ډېر زیار وباسي، د لیک او لوست ګټې ورته ښیي او د نظافت او ټولګي د نظم په هکله هم ورته لازمې لارښوونې کوي. | خپل نومونه ورته ښیي. |
| | او دا ورته وایي چې د ټولګي هر زده کوونکی د خپل ورور په شان وګڼي او هیڅکله قومي، ژبني، مذهبي او سمتي تعصبونو ته لمن ونه وهي بلکې ټول سره ورونه ورونه شي او هیڅکله په خپل ټولګي وال پسې ونه خاندي او نه ملنډې پرې ووهي که څه هم د هغه ځواب غلط وي او یا یې جامې او پایزار زاړه وي او یا د غریبې کورنۍ څخه وي. بلکې که وس مو وي باید مرسته ورسره وکړو. [1] | زده کوونکي د ښوونکي نصیحتونو ته غوږ نیسي. |

---

۱ـــ ښوونکی ته ښایي چې دا خبره ورته په ډېر ټینګار سره ووایي چې هیڅ ټولګیوال ته د ټنبل او غبي په سترګه ونه ګورو، ټنبل او غبي زده کوونکی اصلاً شتون نه لري، هر چا ته الله د پوهې استعداد ورکړی دی خو په کوښښ او زیار پورې اړیکې لري، څوک چې په خپلو درسو کې ډېر زیار باسي، هغه به یې ښه میوه ترلاسه کوي اوښې پایلې به ورباندې مرتبیږي.

## لومړی: لوست

## عنوان: مفصل ایمان

**مخ: ۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمې هجا کړی شي.
- مفصل ایمان وپیژني.
- وپوهېږي چې مفصل ایمان څو مؤمن به شیان رانغښتي دي.
- د مفصل ایمان ګټې وپیژني.
- مؤمن به شیان په عربي وویلی شي (آمنت بالله وملائکته و کتبه......).

**د ځینو کلمو معناوې:**

۱ــ مفصل ایمان: بشپړ ایمان، تفصیلي ایمان

۲ــ قضا: حکم، فیصله، اټل....

۳ــ قدر: اندازه د هر خیر او شر.

**اړینه پوهه:**

**مفصل ایمان یا آمنت بالله وملائکته وکتبه ورسله........**

ایمان په لغت کې باور او تصدیق ته ویل کېږي. او د عقایدو په اصطلاح کې ایمان په مؤمن به شیانو په ژبه اقرار او په زړه تصدیق ته ویل کېږي.

**په الله تعالی ایمان:**

موږ ایمان لرو چې له الله تعالی پرته بل د عبادت لایق نشته، ټول کاینات او مخلوقات الله تعالی پیدا کړي او دی یې متصرف او واکدار دی، پالنه یې هم همدغه ذات کوي او فنا یې هم دده په واک کې ده. الله تعالی په ذات او صفاتو کې هیڅ شریک او ساری نه لري. هیچا ته محتاج نه دی او ټول کاینات او موجودات ده ته محتاج دي.

**په ملایکو ایمان:**

ملایکې د الله تعالی فرمان منونکی او تابعدار مخلوق دی، په خپلو ورسپارل شویو دندو کې امینې دي، په سترګو نه لېدل کېږي او نه یې هر څوک لېدلای شي. توالد او تناسل پکې نشته، په شمار یې هم یو الله خبر دی، په هر بڼه شي ځان بدلولی شي او له نور څخه پیدا شوې دي.

**ایمان په کتابونو:**

موږ ایمان او باور لرو چې ټول اسماني کتابونه حق دي او په دې کتابونو کې یوازې قرآن کریم د تحریف او لاس وهنې څخه پاک دی؛ ځکه ددې کتاب د ساتنې ژمنه او ذمه الله تعالی کړې ده.

الله فرمایي: (إنا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ) یعنې موږ قرآن نازل کړی او موږ یې ساتونکي یو.

او بل داچې په قرآن کریم ټول اسماني کتابونه منسوخ شوي دي؛ ځکه د ټولو اسماني کتابونه مفهوم په قرآن کریم کې شتون لري تر قیامته پورې نړیوال باید په قرآن ایمان ولري او عمل پرې وکړي.
او دا خبره د یادولو وړ ده چې په موجوده تورات او انجیل موږ نه د حق حکم کوو او نه د باطل؛ د حق حکم ځکه نه پرې کوو چې تحریف او لاس وهنه پکې شوې او د باطل حکم ځکه نه پرې کوو چې د الله خبرې هم پکې شتون لري خو دومره خبره ده چې د عمل له مخې په قرآن کریم باندې منسوخ شوي دي.

**ایمان په رسولانو:**

ټول اهل سنت والجماعت په دې متفق دي چې پیغمبران علیهم السلام د الله تعالی بندګان دي. د ټولو ګناهونو څخه پاک او په عقل او بندګۍ کې کامل دي او ټول په یوه دین او یوه ملت دي چې هغه د اسلام سپیڅلي دین دی. ایمان ورباندې فرض دی او د یوه پیغمبر څخه انکار د ټولو انکار ګڼل کېږي. په غیبو نه پوهېږي مګر څومره چې الله په غیبو خبر کړي دي.

**ایمان په آخرت:**

موږ په دې ایمان او باور لرو چې دا دنیا یوه ورځ فنا کېدونکې او یوه بله دنیا راتلونکې ده چې د آخرت په ورځ یادېږي او په دې ورځ به انسانان او پیریان د خپلو کړو وړو نتیجه لاس ته راوړي.

**ایمان په قضا او قدر:**

موږ ایمان او عقیده لرو چې د خیر او شر اندازه د الله له طرفه ده، قدر په لغت کې اندازه کولو او د هغو شیانو برخلیک ته ویل کېږي چې الله تعالی د بندګانو لپاره مقدر کړي دي. ځینې علماء قضا د الله تعالی ازلي حکم او قدر د هغه واقع کېدو ته وایي.
لنډه داچې قضا او قدر د الله تعالی ازلي علم دی پر هر هغو شیانو چې الله یې د پیدا کولو اراده کړې ده یعنې د ټولو کایناتو او مخلوقاتو پیدایښت او د هغو اندازه او په لوح محفوظ کې د هغو ساتنه د الله په اراده رامنځ ته کېږي، ځکه الله تعالی په «ماکان او مایکون» محیط علم لري او هر څه د الله په قدرت، کتابت، حکمت، مشیت او قضا پورې اړیکې لري.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ښاغلی ښوونکی د سلام ویلو، روغبړ، ټولګي ترتیبولو، حاضرۍ اخستلو او نظافت کتلو څخه وروسته په ډېره مینه او مسکۍ بڼه د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي وایي: مفصل ایمان پیژنئ؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «مفصل ایمان» په تخته لیکي او زده کوونکي خپلو کتابونو ته متوجه کوي او لوست په لوړ غږ سره پیلوي، بیا د څو تنو زده کوونکو څخه غواړي چې د نوي لوست متن «مفصل ایمان» د کتاب له مخې د ټولګي په وړاندې په لوړ غږ سره ولولي.<br>ښاغلی ښوونکی ورسره مرسته کوي او تشویقوي یې، مشکلې کلمې ورته په تخته لیکي او په ډېره ساده ژبه یې ورته معنا کوي. او له دوی څخه غواړي چې هغه په خپلو کتابچو کې ولیکي. بیا خپل زده کوونکي په شپږو ډلو | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br><br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| | ویشي او هرې ډلې ته د مفصل ایمان یو یو رکن ورکوي چې د هغه په هکله په خپلو کې خبرې او پوښتنې وکړي. او هر زده کوونکی یې له یاده وویلی شي. یعنې هر زده کوونکی باید د مفصل ایمان شپږ واړه مومن به شیان وپېژني او یاد یې کړي. | |
| | وروسته د لوست لنډیز ورته وایي:<br>مفصل او بشپړ ایمان دادی چې موږ پر الله تعالی، پرښتو، اسماني کتابونو، پیغمبرانو، د آخرت په ورځ، قضا او قدر (په خیر او شر) چې د الله تعالی له لوري دي ایمان او یقین ولرو، هم په ژبه پرې اقرار وکړو او هم یې په زړه تصدیق کړو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ مفصل ایمان څه ته وایي د ایمان د ارکانو نومونه واخلئ؟<br>۲ــ په مفصل ایمان کې څو مؤمن به شیان بیان شوي دي؟<br>۳ــ مؤمن به شیان څوک په عربي ویلی شي؟<br>۴ــ اسماني کتابونه څو دي؟<br>۵ــ پرښتې څرنگه مخلوق دی؟<br>۶ــ قضا او قدر څه معنا لري؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید مفصل ایمان په خپلو کتابچو کې ولیکي او د خپل جومات د امام په مرسته د هر مؤمن به شي په هکله څه نا څه معلومات لاس ته راوړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دویم: لوست

## عنوان: د تمجید کلمه

**مخ: ۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د تمجید کلمه د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د تمجید کلمه وپیژني.
- د تمجید کلمه حفظ کړی شي.
- وپوهېږي چې د تمجید په کلمه کې د اللهﷻ لويي ذکر شويده.
- د تمجید کلمې په معنا او مفهوم وپوهېږي.

**اړينه پوهه:**

**د تمجید کلمې ژباړه:**

سبحان الله: پاکی ده الله لره (د ټولو عیبونو او نقصانونو څخه).

والحمد لله: او ټول د کمال صفتونه الله لره دي.

ولاله الاالله: او نشته هیڅ د عبادت لایق مگر یو الله دی.

والله اکبر: او اللهﷻ ډیر لوی دی.

ولاحول: نشته راگرځیدنه د گناه څخه.

ولاقوة: او نشته قوت او ځواک د الله په پیروۍ او تابعدارۍ،

الا بالله العلی العظیم: مگر د عالي او لوی الله په ساتنې او د هغه په مرستې سره.

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ:قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:«لَأَنْ أَقُولَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ» (مسلم)

ژباړه: له ابوهريرةؓ څخه روايت دی وايي: رسول اللهﷺ وفرمايل: که چيرته دغه څلور کلمې زه ووايم ددغو څلور کلمو ويل تر ټولو هغو شيانو چې لمر پرې راخيژي، راته گرانې دي يعنې له دنيا او مافيها څخه. گواکې دا د لمر راختل په ټولو کايناتو کنايه ده له ټولو مخلوقاتو څخه. همدارنگه د حضرت ابوهريرةؓ څخه روايت دی وايي رسول اللهﷺ فرمايلي دي: (مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ عَنْهُ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ) .

يعنې څوک چې په ورځ کې سل ځله سبحان الله و بحمده ووايي گناهونه به يې ټول ودوړيږي که څه هم دده گناهونه د درياب د ځگونو په څېر وي (دومره ډير وي).

وعن سعد بن ابی وقاصؓ قَالَ:كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ:(أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكْسِبَ كُلَّ يَوْمٍ أَلْفَ حَسَنَةٍ فَسَأَلَهُ سَائِلٌ مِنْ جُلَسَائِهِ كَيْفَ يَكْسِبُ أَحَدُنَا أَلْفَ حَسَنَةٍ قَالَ يُسَبِّحُ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ فَيُكْتَبُ لَهُ أَلْفُ حَسَنَةٍ أَوْ يُحَطُّ عَنْهُ أَلْفُ خَطِيئَةٍ)

ژباړه: سعد بن ابی وقاصؓ وايي موږ د رسول اللهﷺ سره ناست وو نو ده مبارک وفرمايل: ايا يو له تاسو ددې نه عاجز او بيوسې يئ چې هره ورځ زر نيکۍ لاس ته راوړئ، نو د ناستو کسانو څخه يوه تن پوښتنه وکړه څرنگه به يو زموږ د ورځې زر نيکۍ ترلاسه کړي؟ نبی کريمﷺ وفرمايل سل ځله دې تسبيح ووايي ده ته زر نيکۍ ليکل کېږي يا زر بدۍ له ده څخه محوه کېږي.

همدارنګه له ابی ذرﷺ څخه روایت دی د نبی کریمﷺ څخه پوښتنه وشوه چې کومه خبره او کلام ډېر غوره دی؟ نبی کریمﷺ ورته وفرمایل ډېر غوره کلام او خبره هغه ده چې الله تعالی خپلو ملایکو ته غوره کړې ده چې هغه تسبیح او تحمید دی (سبحان الله و بحمده).

ابوهریرهﷺ وايي: ما ته رسول اللهﷺ وفرمایل: «لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ» زیات وایه ځکه دا کلمه د نفس د حیلو او د نفس د غلبې مانع ده.

نووی رحمه الله یې معنا کړې ده: وايي دا د تسلیم کلمه ده هغه دا چې بنده د خپلو کارونو واکدار نه دی نه د شر په رفع کولو کې حیله کولای شي (یعنې له ګناه څخه ډډه نشي کولای) او نه د خیر په جلبولو کې قوت لري مګر د الله تعالی په ارادې سره.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو او کورنۍ دندې له کتلو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي: مثلاً :<br>۱ـــ څوک ویلی شي د مفصل ایمان د ارکانو نومونه واخلي؟<br>۲ـــ د مفصل ایمان ارکان څوک په عربي ویلی شي؟<br>۳ـــ د اسماني کتابونو نومونه څوک ویلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان معلومولو لپاره پوښتنه کوي وايي: ایا د تمجید کلمه پیژنئ؟ وروسته بیا د نوي لوست عنوان (د تمجید کلمه سره له محتوا) په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز سره پیلوي، زده کوونکي یې هم په لوړ غږ ورپسې تکراروي.<br>بیا په څو زده کوونکو: سبحان الله، والحمدلله، ولاحول او ځینې نورې کلمې هجا کوي او ورته وايي څوک دا کلمې په تخته لیکلای شي؟<br>بیا زده کوونکي په شپږو ډلو ویشي او هرې ډلې ته ددې کلمې څخه یوه یوه کلمه ورکوي څو په خپلو منځو کې یې تکرار او حفظ کړي. | |
| ۱۰ دقیقې | وروسته د لفظ لنډیز ورته وايي: « سُبْحَانَ اللَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيمِ» او ورته وايي ددې کلمې یادول ډیر ضروري او مقصدي کار دی. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ د تمجید کلمه کومه ده؟<br>۲ـــ د تمجید معنا څه ده؟<br>۳ـــ د تمجید کلمه له یاده ووایاست؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>د تمجید کلمه په خپلو کتابچو کې ولیکئ او حفظ یې کړئ. | ځوابونه ووایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**درېم او څلورم: لوست**

## عنوان: د توحيد کلمه (۱) (۲)

**مخ: ۵ ــ ۷**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- د توحيد کلمه د کتاب له مخې وويلی شي.
- د توحيد کلمه حفظ کړی شي.
- د توحيد کلمې په معنا وپوهېږي.
- وپوهېږي چې د توحيد کلمه د الله په وحدانيت دلالت کوي او له الله څخه شرک لرې کوي.
- وپوهېږي چې واک او پاچاهي، مرګ او ژوند ټول د الله په لاس دي.

**اړینه پوهه:**

**د توحيد د کلمې ژباړه:**

لااله الاالله: نشته هيڅ د عبادت لايق مګر يو الله دی.

وحده لاشريک له: الله يوازينی ذات دی هيڅ سيال ده لره نشته.

له الملک وله الحمد: خاص ده لره پاچاهي (واکداري) ده او خاص ده لره ستاينې او کامله صفتونه دي.

ددې کلمې د فضيلت او غوره والي په هکله نبی کريمﷺ فرمايلي: «مَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ وَكُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ وَمُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنْ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذَلِكَ حَتَّى يُمْسِيَ وَلَمْ يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ إِلَّا أَحَدٌ عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ»

ژباړه: رسول اللهﷺ وفرمايل: څوک « لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ» سل ځله ووايي نو ده ته د لسو غلامانو آزادولو برابر ثواب ورکول کېږي او سل نيکی ورته ليکل کېږي او سل ګناوې يې محو کېږي او په دغه ورځ به د شيطان له شر او وسوسو څخه هم ژغورل شوی وي ترڅو چې شپه شي. او دده په پرتله به د هيچا عمل غوره نه وي مګر د هغه چا چې دغه کلمه يې ترده زياته ويلې وي.

همدارنګه ابی سعيد او ابی هريره رضی الله عنهما روايت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: څوک چې ووايي: «لااله الاالله والله اکبر» نو الله يې رښتينې کوي او فرمايي «لااله الا انا وانا اکبر»: نشته بل د عبادت لايق مګر زه يم او زه تر ټولو لوی يم. واذا قال لااله الاالله وحده لاشريک له – يقول الله: لااله الا انا وحدی لاشريک لی. يعنې کله چې بنده ووايي نشته بل د عبادت وړ مګر يو الله دی، الله يوازينې ذات دی او شريک نلري نو الله فرمايي: نشته بل د عبادت وړ مګر زه يم يوازنی ذات او ماته شريک نشته.

واذا قال لااله الاالله له الملک وله الحمد، قال الله لااله الا انا لی الملک ولی الحمد.

او کله چې بنده ووايي: نشته د عبادت وړ ذات مګر يو الله دی، ده لره پاچاهي ده او ده لره کامله صفتونه دي نو الله فرمايي: نشته بل د عبادت لايق مګر زه يم مالره پاچاهي ده او مالره ستاينې او بشپړ صفتونه دي.

واذا قال لااله الاالله ولاحول ولاقوة الا بالله قال الله: لااله الا انا.



او کله چې بنده ووايي بل د عبادت لایق نشته او نشته راګرځېدنه د ګناه څخه او قوت په پیروۍ او اطاعت مګر د الله په ساتنې او د هغه په مرستې سره. الله تعالی فرمایي: «لااله الا انا ولاحول ولاقوة الابالله» نشته بل د عبادت لایق مګر زه یم او نه د ګناه څخه راګرځېدنه شته او نه قوت په پیروۍ شته مګر زما په ساتنې او مرستې سره دي.
او دا به يې هم ویل که څوک په مرض کې دا کلمه ووايي او بیا مړ شي نو اوربه يې ونه خوري.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي لکه:<br>۱ــ تمجید کلمه څوک ویلی شي؟<br>۲ــ تمجید کلمه څوومه کلمه ده؟<br>۳ــ د تمجید معنا څه ده؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | د ځوابونو له اوریدلو څخه وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان معلومولو لپاره پوښتنه کوي: ایا د توحید کلمه پیژنئ؟ له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د توحید کلمه» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز سره وايي، زده کوونکي يې هم ورپسې تکراروي.<br>بیا په څو زده کوونکو په نوبت سره (البته داسې نوبت چې د زده کوونکو لست په زړه کې ساتي څو ونه وايي چې زما نوبت تیر شوی دی نن يې په ما نه وايي.<br>لوست لولي او ځینې کلمې په تخته ورته لیکي څو ښې د دوی په ذهن کې کیني. | |
| ۱۰ دقیقې | بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي: څوک د توحید کلمه له یاده ویلی شي؟ کله چې له زده کړې څخه ښه ډاډه شو وروسته د لوست لنډیز ورته وايي: لااله الا الله وحده لاشریک له، له الملک وله الحمد و هو علی کل شی قدیر. | لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ځوابونه وايي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>وروسته زده کوونکي ارزوي څو د دوی په هکله ډاډه او مطمئن شي.<br>۱ــ د توحید کلمه به څوک د کتاب له مخې وویلای شي؟<br>۲ــ د توحید کلمه به څوک له یاده وویلی شي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>د زده کوونکو څخه غواړي چې دغه کلمه په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لوست: پنځم، شپږم، اووم او اتم

## عنوان: آیة الکرسي

**مخ: ۹ــ ۱۵**

**وخت: څلور درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- آیة الکرسي د کتاب له مخې ولوستلي شي.
- آیة الکرسي د یاده وویلی شي.
- وپوهېږي چې دا آیت د قرآن د آیتونو سردار ګڼل کېږي.
- وپوهېږي چې ددې آیت تلاوت شیطان شړي.
- پوه شي چې ددې آیت لوستل په هر فرض لمانځه پسې او د شپې له مخې ډېر ثواب لري.

**د آیة الکرسي اجمالي ژباړه:**

له الله، هغه ژوندي او ابدي ذات نه پرته چې ټول کاینات یې تنظیم کړي دي، بل هیڅ الله نشته، هغه نه ویده کېږي او نه پرکالي پرې راځي، په اسمانونو او ځمکه کې چې هرڅه دي د هغه مالکیت دی، څوک دی چې د هغه په وړاندې د هغه له اجازې پرته سپارښت وکړئ شي؟ څه چې د بندګانو په وړاندې دي، پر هغو هم خبر دی او څه چې له هغو نه پټ دي پر هغو هم خبر دی او د هغه له معلوماتو څخه هیڅ شی د هغوی په ادراک کې نشي ایساریدای، مګر داچې د کوم شي علم ورکول هغه په خپله وغواړي. د هغه حکومت پر اسمانونو او ځمکو خور شوی دی او د هغو ساتنه د هغه لپاره کوم ستومانوونکی کار نه دی یوازې هماغه لوی او لوړ ذات دی.

نبی کریمﷺ فرمایي: کله چې مؤمن په هر لمانځه پسې دا آیت ووایي نو دده او جنت ترمنځ یوازې مرګ حائل دی، رواه نسایي. او ځیني علماء وایي چې دغه آیت په اسم اعظم باندې هم شامل دی چې هغه د «اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ» برخه ده.

**شرح:** آیة الکرسي په قرآن کریم کې ترټولو لوی آیت دی. او ددې آیت په پیل کې دا خبره ثابته ده چې د عبادت لایق یوازې همدا ذات دی. او نوره برخه یې پر همدې خبره دلیلونه دي.

په دې آیت کې لس مستقلې جملې دي په دې ډول: (اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ) له دې جملې څخه د الله تعالی الوهیت معلومېږي.

«الْحَيُّ الْقَيُّومُ» الله همیشه ژوندی دی چې هیڅکله نه مري او قیوم دی ځکه د ټولو موجوداتو قوام تر همدې ذات پورې اړه لري او ټول کاینات او موجودات همده ته محتاج دي.

«لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ» یعنې په الله جل جلاله غفلت، پینکی او خوب نه راځي.

« لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ » د ټولو کایناتو او موجوداتو مطلق واکدار دی او څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي ټول دده ملکیت ګڼل کېږي.

«مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ» یعنې د الله له اجازې پرته هیڅوک د هیچا سپارښت نشي کولی او نبی کریمﷺ هم شفاعت دده په اجازې سره کوي.

«يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ» یعنې د بندګانو په ظاهر او باطن، په ماضي او مستقبل خبر دی او په ټولو مخلوقاتو احاطه لري.

«وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء» یعنې د الله په علم هیڅوک خبرتیا نه لري مګر چاته چې الله په کومه اندازه خبر ورکړی وي.

«وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ» يعنې د الله كرسي (حكومت، علم او قدرت) اسمانونه او ځمكه دربر نيولي دي او د كرسۍ او عرش په اندازه او لويوالی هم يو الله خبر دی.

«وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا» د اسمانونو او ځمكې او څه چې د دوی په منځ كې دي لكه انسانان، پيريان، ملائكې او نورو.... ساتنه په الله آسانه ده او څه بوج او ستوماني نه پرې واقع كوي.

«وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ» او همدا الله عالی شان او ډير د لوړې مرتبې خاوند دی.

ابن عباس رضي الله عنه وايي د الله له كرسي څخه د الله علم مراد دی، طبري دې رأيې ته ترجيح وركړې ده. او د لغت علما هم په دې نظر دي چې كرسي د علم په معنا ده له همدې امله علماوو ته «كراسي» ويل كېږي ځكه دوی د خلكو د اعتماد وړ شخصيتونه دي.

| وخت | د ښوونكي فعاليت | د زده كوونكو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | ښاغلی ښوونكی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تير لوست ارزونه كوي لكه:<br>۱ــ د توحيد كلمه څوک ويلای شي؟<br>۲ــ د توحيد د كلمې دغه جملې «يحی، و يميت، بيده الخير څوک هجاء كولی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره كوي.<br>په لوست كې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقيقې | له ځوابونو اوريدلو وروسته د نوي لوست د عنوان معلومولو لپاره پوښتنه كوي: په قرآن كريم كې تر ټولو لوی او عزتمن آيت پيژنئ؟<br>له ځواب اوريدلو وروسته د نوي لوست عنوان «آية الكرسي» په تخته ليكي او څومره برخه چې په دې لوست كې شتون لري هغه په لوړ آواز لولي او زده كوونكي يې ورپسې بدرګه كوي. او بيا لوست په څو زده كوونكو تكراروي او ورته وايي څو د آية الكرسي ننۍ برخه حفظ هم كړي.<br>محترم ښوونكی ټولګيوالو ته دا نه ښكاره كوي چې فلان او فلان.... ضعيف او كمزوري دي خو په خپل زړه كې ورته زياته پاملرنه كوي څو دوی هم لايق شي. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۱۰ دقيقې | وروسته د لوست لنډيز وايي او د آية الكرسي د ويلو ثواب ورته بيانوي.<br>وروسته د زده كوونكو ارزونه كوي:<br>۱ــ ددې لوست مربوطه برخه څوک له ياده ويلی شي؟<br>۲ــ د الحی، القيوم، سنة، نوم، يشفع كلمې څوک هجاء كولی شي؟<br>۳ــ دغه ذكر شوې كلمې څوک په تخته ليكلی شي؟ | ځوابونه وايي. |
| ۵ دقيقې | **كورنۍ دنده:**<br>زده كوونكو ته دنده وركوي چې د آية الكرسي دغه برخه حفظ كړي. | كورنۍ دنده ترسره كوي. |

## لوست: نهم

## عنوان: توحید

**مخ: ۱۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د توحید په معنا او مقصد وپوهېږي.
- وپوهېږي چې الله واحد دی او هیڅ شریک نه لري.
- وپوهېږي چې غیب د الله خاصه ده.
- په توحید یې عقیده ټینګه شي.

**د ځینو کلماتو معناوې:**

توحید: یوازوالی

عبادت: عاجزي کول، لمانځنه

عیب: کموالی، ناخوښي

ساری: مثال، سیال

غیب: پټ، نا معلوم

مخلوقات: موجودات

**اړینه پوهه:**

توحید: توحید د تفعیل وزن دی او د یو شي په یوازوالي حکم کولو ته وایي. او د عقائدو په اصطلاح کې باور درلودنه ده په دې چې یوازې الله تعالی د عبادت لایق او وړ دی او همدی د کایناتو پیدا کوونکی، متصرف او تدبیر کوونکی دی. او په خپلو نومونو او صفتونو کې هیڅ شریک او سیال نه لري. ځکه الله تعالی واجب الوجود ذات دی او د الله نه پرته ټول شیان په خپل ذات کې ممکن الوجود دي، په وجود او مرسته کې الله ته محتاج دي.

توحید د ګردو پیغمبرانو لومړنی دعوت دی لکه چې قرآن خبر راکوي: (وَمَا أَرْسَلْنَا مِن قَبْلِكَ مِن رَّسُولٍ إِلَّا نُوحِي إِلَيْهِ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا فَاعْبُدُونِ) الانبیاء ــ ۲۵.

ژباړه: موږ چې له تانه مخکې هر پیغمبر لېږلي دی، هغه ته موږ همدغه وحې کړېده چې زما څخه پرته بل الله نشته نو تاسې همدا زما بندګي وکړئ.

الله تعالی په خپل ذات کې واحد دی، خو نه د عدد (شمار) له مخې ځکه د عدد له مخې توحید هغه دی چې د هغه څخه وروسته نور عددونه هم موجود وي (الله یې اول وي) بلکې د الله توحید او یوالی په داسې توګه دی چې په نومونو او صفتونو کې هیڅ شریک او ساری نه لري. او داسې واحد دی چې هیچا ته احتیاج او اړتیا نه لري بلکې ټول کاینات الله ته اړ او محتاج دي.

او که انسان د مخلوقاتو په نظم کې تفکر او تدبر وکوي ثابتېږي چې دا مخلوقات حتماً یو پیدا کوونکی لري که زیات وای حتماً دا د کایناتو نظم ګډوډ کیده لکه چې الله تعالی فرمایي: (لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا) الانبیاء ــ ۲۲.

یعنې که په اسمان او ځمکه کې له یو الله نه پرته نور خدایان هم وای، نو د ځمکې او اسمان دواړو نظام به وران شوی ؤ.

یا په بله وینا که په ځمکه او اسمان کې دوه خدایان وای نو اختلاف یکې طبیعي خبره وه په داسې توګه چې یوه به ویل یو ټاکلی کار دې ترسره شي او بل به مخالف نظر ورکاوه، که دا عمل اجراء کېدلی نو یو به غالب او بل به مغلوب کېده چې دا د حدوث (یعنې مغلوب کېدل د حدوث نښه ده). او یا به هغه عمل د دواړو په خوښه ترسره کېده په دې صورت کې دوه متضاد عملونه سره جمع کېدل، دا په هیڅ صورت د قبول وړ نه دی او بل ددې نه عجز هم ثابتېږي چې یو کار په دواړو سره کوي، نو معلومه شوه چې د نړۍ د کایناتو پیداکوونکی او جوړونکی یوازې یو الله دی چې په ټولو کمالیه صفتونو ستایل شوی او د هر ډول کموالي او د عیب له صفتونو څخه پاک او خالي دی.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته کورنۍ دنده ګوري ورپسې د تیر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ـــ آیة الکرسي څوک د کتاب له مخې لوستلای شي؟<br>۲ـــ آیة الکرسي له یاده څوک ویلی شي؟<br>۳ـــ دغه کلمې: القیوم، لاتأخذه، یحیطون، ولایؤده، وسع کرسیه څوک هجا کولی او لیکلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو څخه وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان په هکله پوښتنه کوي وایي: ایا توحید پیژنئ؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «توحید» په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د خپلو ځانونو سره په پټه خوله مطالعه کړي، ښوونکی د لوست ستونزمنې کلمې په تخته لیکي لکه غیب، ځانګړتیا، ساری، عبادت، توحید او شرک، بیایې زده کوونکو ته معنا کوي.<br>له هغه وروسته لوست په څو تنو لولي او دی یې غلطۍ اصلاح کوي | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي:<br>توحید د الله پاک یووالي ته ویل کېږي، الله تعالی په ذات، صفاتو او اسمونو کې شریک او ساری نه لري، له هر ډول عیب څخه پاک دی، موږ باید مخلوق ته د الله تعالی صفتونه ورنکړو. او له الله نه پرته بل څوک په غیبو عالم ونه ګڼو، پیغمبرانو ته الله تعالی د ځینو پټو شیانو علم ورکړی دی خو موږ هغو ته علم غیب نه وایو بلکې د غیب څخه خبر ورکول دي ځکه په څه شي چې خبر ورکړی شو نو بیا غیب پاتې نشو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ توحید څه ته ویل کېږي؟<br>۲ـــ په غیبو پوهېدنه د چا ځانګړتیا او خاصه ده؟<br>۳ـــ ایا پیغمبران په غیبو پوهېږي؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>دغه لوست په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## لسم او يوولسم: لوست

## عنوان: شرک

**مخ: ۱۹ــ ۲۱**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست په ستونزمنو کلمو وپوهېږي.
- شرک وپیژني.
- وپوهېږي چې شرک څو ډولونه لري.
- د شرک تاوانونه وپیژني.
- په دې پوه شي چې مشرک ته په آخرت کې هيڅ ډول ښښنه نه کېږي.
- وپوهېږي چې شرک لوی ظلم دی.

**د ځینو کلماتو معناوې:**

**تعظیم**: درناوی، احترام

**صفتونه**: ستاینې

**اړینه پوهه:**

**شرک**: شرک په لغت کې برخې ته ویل کېږي. او په اصطلاح کې د الله تعالی سره په ذات، صفتونو، واکداریو او عبادت کې شریک جوړول دي.

**شرک په دوه ډوله دی: لوی شرک او وړوکی شرک.**

**لوی شرک**: انسان د ایمان له دایرې څخه وباسي او ټول عملونه له منځه وړي او که په دې عمل اخته له توبې پرته مړ شي، تل به په دوزخ کې وي، او دا شرک په څلور ډوله دی: ۱ــ شرک په دعا او بلنه کې. ۲ــ شرک په نیت او قصد کې. ۳ــ شرک په اطاعت کې. ۴ــ شرک په محبت کې.

**وړوکی شرک**: هغه ګناه ده چې پیغمبرﷺ د زجر او رټنې په خاطر د شرک په نامه نومولی وي، خو مؤمن د ایمان څخه نه پرې خارجیږي.

او یوازې هغو ګناهونو ته د شرک نسبت کولای شو چې شارع (الله او رسول) هغه په شرک سره نومولي وي او دا شرک هم په دوه ډوله دی:

**اول ـــ ظاهر شرک**: چې په الفاظو او افعالو کې راځي. په الفاظو کې لکه د الله نه پرته په بل څه قسم کول. رسول اللهﷺ فرمایي: من حلف بغیر الله فقد کفر واشرک.

او شرک په افعالو کې لکه څوک چې د مرض څخه د تداوۍ په خاطر په داسې شي توسل نیسي چې هغه په تاریخ کې د مرض دافع نه وي ګڼل شوی. کله چې نبی کریمﷺ فرمایي: (مَنْ عَلَّقَ تَمِيمَةً فَقَدْ أَشْرَكَ)

د (تمیمه) څخه مراد هغه تعویذونه دي چې په هغو کې شرکي الفاظ شتون ولري او یا د جاهلیت د زمانې هغه مرۍ او مهرې دي چې د ماشومانو او حیواناتو په غاړه کې یې اچولې.

دا هم باید ووایو چې شرک ډېره لویه ګناه او لوی ظلم دی لکه چې الله فرمايي: ﴿إِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ﴾.

او مشرک ته بښنه هم نه کوي ځکه الله فرمايي: ﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء﴾.

ژباړه: الله تعالی یوازې شرک نه بښي له دې نه پرته نورې چې څومره ګناوې وي چې د هغه چا ته خوښه شي وربښي يې:

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو ترسره کولو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. وايي:<br>۱ـــ د توحید معنا څوک ویلی شي؟<br>۲ـــ په غیبو پوهېدنه د چا خاصه ده؟<br>۳ـــ ایا پیغمبران په غیبو څومره پوهېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | د ځوابونو له اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي وايي: شرک څرنګه ګناه ده؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «شرک» په تخته لیکي. بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست د خپلو ځانونو سره ووايي او دی په خپله د لوست ټولې جملې په تخته لیکي. او بیا د څو زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په لوړ آواز ولولي، دی یې غلطۍ اصلاح کوي. ورپسې د لوست څو کلمې لکه عبادت، ګناه، مشرک، جنت په زده کوونکو لیکي څو د املاء سره روږدي شي. | |
| ۱۰ دقیقې | بیا زده کوونکي په پنځو برخو ویشي او یوه یوه جمله ورکوي څو د هغو په هکله بحث او څېړنه وکړي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته وايي:<br>شرک د الله سره په عبادت کې شریک نیولو ته ویل کېږي، شرک لویه ګناه ده، د شرک نه پرته الله ټول ګناهونه بخښي که يې خوښه شي.<br>مشرک جنت نه نشي داخلیدای، الله فرمايي: ﴿إِنَّ اللّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء﴾.<br>الله تعالی په ذات، صفاتو او اسمونو کې شریک نه لري. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ شرک څه ته وايي؟<br>۲ـــ شرک څه ډول ګناه ده؟<br>۳ـــ ایا مشرک ته بښنه کېدای شي؟<br>۴ـــ یا مشرک جنت ته داخلېږي؟<br>۵ـــ ایا د اسبابو څخه فوق د مخلوق څخه غوښتنه روا ده؟<br>٦ـــ د الله سره په صفتونو کې شرک څه مفهوم لري؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته وايي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وايي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دوولسم: لوست

## عنوان: کفر

**مخ: ۲۳**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- کفر وپيژني.
- له کفري الفاظو څخه ډډه وکړي.
- کفر ورته په زړه کې داسې څرګند شي لکه اور ته ځان اچول.
- په دې وپوهېږي چې په کافر جنت حرام دی.
- دا درک کړي چې کافر به تل په دوزخ کې وي.

**د ځېنو کلمو معناوې:**

کفر: نه منل، انکار

انکار: نه منل

جائز نه دي: روا نه دي

بیلګې: نښې، مثالونه

ملندې: لوبې او سپک ګڼل

**اړينه پوهه:**

کفر: کفر په لغت کې پټولو ته وايي[۲] او د عقائدو په اصطلاح کې کفر د ایمان ضد دی. او په دوه ډوله دی: لوی کفر او کوچنی کفر.

۱ـــ لوی کفر: د ایمان ضد او منافي دی او پر پنځه ډوله دی:

۱. د دورغ ګڼلو کفر.

۲. د تکبر او لوی ګڼلو کفر.

۳. د اعراض او مخ ګرځولو کفر.

۴. د شک او تردید کفر.

۵. د جحود او انکار کفر.

۲ـــ کوچنی کفر: هغه ګناه ده چې الله او رسول د زجر، رټنې او تهدید په وجه ورته کفر ویلی وي په حقیقت کې وړوکی کفر د ایمان ضد او منافي نه دی، خو ایمان ضعیفوي که یې مرتکب توبه و نه باسي نو هغه د الله په مشیت کې دی، که وغواړي عذاب ورکوي او که وغوړي ببښنه ورته کوي.

---

[۲] ـــ لکه چې په قرآن کې دهقان ته «کافر» ویل شوي دي ځکه دهقان هم د کرنې تخم (دانه) په خاورو کې پټوي، او کافر حق دین پټوي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د سلام ویلو، روغبړ، ټولګي ترتیبولو، حاضرۍ اخستلو او نظافت له کتلو وروسته په ډېره مینه او بشاشه څېره د تیر لوست ارزونه کوي:<br>۱ـ د شرک بیلګې څوک ویلای شي؟<br>۲ـ د الله په صفاتو کې د مخلوق شریکول څه معنا لري؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | ۳ـ ایا مشرک ته په آخرت کې ښښنه کېدای شي؟<br>۴ـ څوک کولای شي ووایي چې شرک څه ته وایي؟<br>له دېنه وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي: ایا کفر پیژنئ؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «کفر» په تخته لیکي او د لوست په ویلو پیل کوي. لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، مشکلې کلمې په تخته لیکي او ورته معنا کوي یې، له هغه وروسته څو زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي او لوست ورباندې تکراروي او د لغاتو پوښتنه ترې کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | بیا وروسته زده کوونکي په څلورو ډلو ویشي او هرې ډلې ته دنده ورکوي چې د کفر په هکله یو د بل سره بحث او خبرې وکړي څو کفر ښه وپیژني.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د ښوونکي څخه خپلې پوښتنې وکړي | |
| ۵ دقیقې | او ښوونکی ورته په پرانستې ټنډه ځوابونه وایي .<br>بالآخره ورته د لوست لنډیز وایي:<br>کفر د انکار په معنا دی.<br>د مؤمن به شیانو څخه منکرېدل کفر ګڼل کېږي.<br>مسلمان ته باید کافر ونه وایو.<br>مسلمان باید کفري الفاظ په ژبه ونه وایي. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ـ کفر څه ته وایي؟<br>۲ـ آیا مسلمان ته روا ده چې بل مسلمان ته کافر ووایي؟<br>۳ـ کفر په لغت کې څه ته ویل کېږي؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دیارلسم او څوارلسم: لوست

## عنوان: استنجاء

**مخ: ۲۷ــ ۳۰**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- استنجاء وپیژني.
- ویوهېږي چې استنجاء څه حکم لري.
- درک کړي چې غوره استنجاء کومه ده.
- ویوهېږي چې استنجاء په کومو شیانو کېږي او په کومو نه کېږي.
- پوه شي چې استنجاء په کوم لاس کېږي.

**اړینه پوهه:**

**استنجاء:**

د دواړو شرمځایونو پاکوالي ته په مسحې سره وي او که په مینځلو سره استنجاء ویل کېږي. خو استنجاء په اوبو سره غوره ده ځکه اوبه ښې پاکوونکې دي او اولی خبره داده چې لومړی په لوټې یا تېږې یا تشناب کاغذ سره استنجاء وشي او وروسته بیا په اوبو هم پریمنځل شي.

دا چې الله فرمایي: (فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَن يَتَطَهَّرُواْ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ) ددې کسانو څخه هم هغه کسان مراد دي چې استنجاء به یې په لوټه او اوبو دواړو سره وهله. وایي کله چې دا آیت نازل شو نو رسول الله ﷺ وفرمایل: ای د قبا خلکو الله تعالی ستاسو ستاینه کړې تاسو د غټې اودس ماتي په مهال څه کوئ؟ دوی وویل: مونږ لومړی په تېږه استنجاء کوو او له هغه وروسته بیا په اوبو استنجاء کوو.

استنجاء په هر جامد (کلک) پاک شي جائز ده چې پاکوونکی او لرې کوونکی د نجاست د اثر وي او ضرر ناک شی نه وي (لکه شیشه، پخه خښته، هډوکی او احترام والا کوم شی لکه د لیکلو کاغذ او له هغه شي سره د چا حق نه وي مربوط.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي لکه:<br>۱ــ څوک ویلی شي چې کفر څه شی دی؟<br>۲ــ ایا مسلمان ته روا ده چې بل مسلمان ته کافر ووایي؟<br>۳ــ څوک ویلای شي چې کفر په لغت کې څه ته وایي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي وایي استنجاء باید په کوم لاس وکوو؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «استنجاء» په | |

| وخت | فعالیتونه | ارزونه |
| --- | --- | --- |
| | تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست په پټه خوله ولولي او دی د استنجاء تعریف او د لوست مهمې جملې هم په تخته لیکي. | |
| ۱۰ دقیقې | او بیا لوست ټوټه ټوټه په زده کوونکو لولي او بیا زده کوونکو ته موقع ورکوي چې د لوست په هکله له ښوونکي څخه پوښتنې وکړي. او ښوونکی ورته په پراخه ټنده ځوابونه وايي او د هیچا پوښتنه غبي نه ګڼي او نه ورته وايي چې ستا پوښتنه مناسبه نده ځکه په دې کار سره زده کوونکي بی جرأته کېږي. باید زده کوونکو ته روحیه او جرأت ورکړو. | |
| | وروسته ورته د لوست لنډیز وايي: | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | استنجاء: د شرم ځای پاکولو ته ویل کېږي برابره ده که په مسحې سره وي او که په وینځلو سره، استنجاء په لوټه، تیږه، تشناب کاغذ او بیا په اوبو سره غوره ده او بل داچې استنجاء باید په چپ لاس وکوو او که نجاست له مخرج څخه تجاوز کړی وي بیا یې په اوبو وینځل واجب دي. او دا هم ورته ښیي چې په ډوډۍ، هډوکي، د لیکلو په کاغذ او خوشایو استنجاء روا نده. | |
| | **ارزونه:**<br>۱ــ استنجاء تعریف کړئ؟<br>۲ــ استنجاء په کوم حالت کې په اوبو واجب ده؟<br>۳ــ استنجاء باید په کومو شیانو وکوو؟<br>۴ــ په کومو شیانو استنجاء ناروا ده؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## پنځلسم: لوست

## عنوان: د اوداسه فرضونه

**مخ: ۳۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په سمه توګه ولوستلی شي.
- د اوداسه فرضونه وپیژني. او د فرضو په ارزښت پوه شي.
- وپوهېږي چې د اوداسه په فرضو کې که یو ویښته ځای وچ پاتې شي لمونځ نه کېږي.
- اودس په عملي توګه وکولای شي.

**اړینه پوهه:**

په اوداسه کې څلور شیان فرض دي:

۱ــ د ټول مخ وینځل د ویښتانو له شنه کېدو څخه تر زنې لاندې او د غوږ له یوه نرمي څخه تر بل نرمي پورې.

۲ــ د لاسونو وینځل سره د څنګلو.

۳ــ د سر د څلورمې برخې مسح.

۴ــ د پښو وینځل سره له ښنګریو.

د اوداسه د مشروعیت او فرضیت دلیل: الله تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلاةِ فاغْسِلُواْ وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُواْ بِرُؤُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَينِ﴾ [مائده: ٦]

ژباړه: اې مؤمنانو کله چې تاسې د لمانځه اداء کولو لپاره پاڅېدئ (بې اودسه یئ) نو باید خپل مخونه او لاسونه سره له څنګلو ووینځئ، پر سرونو باندې لاسونه راکاږئ او پښې سره له ښنګریو پرې مینځئ.

نبی کریمﷺ هم فرمایي: (لَاصلَوةَ لِمَنْ لَاوَضُوءَ لَهُ) یعنې له اوداسه پرته لمونځ نشته. همدارنګه له ابوهریرةؓ څخه روایت دی چې نبی کریمﷺ فرمایي: د قیامت په ورځ به زما د امت لاسونه، پښې او تندې سپینې ځلېږي، نو څوک که غواړي چې د سپین والي ځلېده یې ډېر وي باید د اوداسه د غړو په وینځلو کې (د فرض اندازې) نه زیاتوالی وکړي.

همدارنګه د ابوهریرةؓ څخه روایت دی وایي: (سَمِعْتُ خَلِيلِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: (تَبْلُغُ الْحِلْيَةُ مِنَ الْمُؤْمِنِ، حَيْثُ يَبْلُغُ الْوَضُوءُ).

یعنې ما له خپل دوست څخه واورېدل چې ویل یې: (د قیامت په ورځ به) د مؤمن زیورات (ګاڼه) هغه ځای ته رسېږي کوم ځای چې د اوداسه اوبه رسېږي. او د حضرت عثمان بن عفانؓ څخه روایت دی وایي: (قال رسول اللهﷺ مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ).

یعنې: څوک چې اودس وکړي او ښه په ترتیب اودس وکړي، ګناهونه یې له بدن څخه لرې کېږي ان تر دې چې د نوکانو له بیخونو څخه یې هم راوځي.

او د مسحې په هکله له مغیرة بن شعبةؓ څخه روایت دی چې نبی کریمﷺ د یوه قوم خرابې ته د اودس ماتي لپاره ولاړ او بیا یې اودس وکړ او د سر په څلورمه برخه یې مسح وکړه.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي لکه:<br>۱ــ استنجاء څوک تعریفولای شي؟<br>۲ــ څوک ویلای شي استنجاء په کوم وخت کې په اوبو سره واجب ده؟<br>۳ــ څوک ویلای شي استنجاء په کومو شیانو نا روا ده؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان په اړه پوښتنه کوي. له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د اوداسه فرضونه» سره له محتوا په تخته لیکي. او بیا یې په لوړ غږ لولي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي. او بیا لوست شماره په یو یو زده کوونکي باندې لولي. او بیا یو یو زده کوونکی تختې ته راغواړي او یوه یوه کلمه وربانديې په تخته لیکي څو د املاء سره روږدي شي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو یو د بل څخه پوښتنې وکړي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي: | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | د اودسه فرضونه څلور دي: د مخ وینځل، د لاسو وینځل سره له څنګلو او د سر مسحه څلورمه حصه او د دواړو پښو وینځل سره له ښنګرو. که په دې فرضو کې یو غړی یا په یوه غړي کې د یو ویښته په کچه ځای وچ پاتې شي لمونځ نه کیږي. | ځوابونه وایي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ په عملي توګه اودس څوک کولای شي؟<br>۲ــ د اوداسه فرضونه څو او کوم دي؟<br>۳ــ د مخ وینځلو اندازه کومه ده؟<br>۴ــ د سر مسحه څومه برخه فرض ده، او د فرضیت دلیل یې څه دی؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## شپاړسم او اوولسم: لوست
## عنوان: د اوداسه اوبه

**مخ: ۳۳**

**وخت: دوه درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- پاکې او نا پاکې اوبه وپیژني.
- وپوهېږي چې په کومو اوبو اودس کول روا دي.
- د پاکو اوبو ډولونه له یاده وویلی شي.
- وپوهېږي چې په کومو اوبو اودس نه کېږي.

**اړینه پوهه:**

**د اوداسه اوبه:**

د اوبو په هکله الله تعالی فرمايي: (وَأَنزَلْنَا مِنَ السَّمَاء مَاء طَهُورًا). ژباړه: او موږ له آسمانه پاکې اوبه نازلې کړې دي.
او طهور: دیته وایي چې په خپله هم پاکې وي او د نورو شیانو لپاره هم پاکوونکې وي.
په بل آیت کې الله تعالی فرمایي: (أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاء مَاء فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ).
ژباړه: آیا ته وینې چې الله له اسمانه اوبه اورولې دي بیا یې هغه د کاریزونو او چینو او سیندونو په شکل په ځمکه کې وبهولې. هدف دا چې اوبه ټولې د آسمانه (له پاسه) راغلې دي.
نبی کریمﷺ د اوبو په هکله فرمايي: (إنَّ الماءَ طَهُورٌ لا يُنَجِّسُهُ شيءٌ). اوبه پاکې دي هیڅ شئ یې نشي نجسولی.
هدف داچې ترڅو د نجاست په لویدلو د اوبو صفتونو (خوند، رنګ اوبوی) ته تغیر نه وي ورغلی، هغه اوبه پاکې ګڼل کېږي. او که د پاک شي په واسطه د اوبو له دریو صفتونو څخه یوه صفت ته تغیر ورکړی شوی وي لکه د سیل، صابون، زعفران او زمې اوبه، په هغو اوبو اودس کول جواز لري.
او که دوو صفتونو ته یې تغیر ورکړی وي، نو صحیح خبره داده چې اودس وربانديې جواز لري.
که د ونو د پاڼو په لویدلو سره د اوبو درې واړه صفتونه تغیر وکړي لکه د مني په موسم کې، په هغو اودس کول روا دي.
اوبه د مطلق والي څخه هلته وځي چې د خپل صفت څخه چې هغه رقت او بهیدل دي ووځي، مثلاً اوبو ته ورګډ شوی پاک شي، په اوبو غالب شي، نو بیا اودس وربانديې جواز نه لري او که اوبه وربانديې غالبې وې، بیا اودس کول وربانديې جواز لري.
او که اوبو ته شیدې ورګډې شي او د شیدو رنګ او خوند غالب شي اودس وربانديې جواز نه لري والا بیا جواز لري.
که اوبو ته داسې شی ورګډ شي چې رنګ یې له اوبو سره مخالف وي نو غلبه د رنګ اعتبار لري او که د اوبو له رنګ سره مخالف نه وي، نو بیا د خوند غلبې ته اعتبار ورکول کېږي او که یې په رنګ او خوند کې ورسره توپیر نه درلود نو بیا د ګډ شوي شي اجزاوو د برخو غلبې ته اعتبار ورکول کېږي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>۱ـــ څوک د اوداسه فرضونه ویلی شي؟<br>۲ـــ د مخ د وینځلو اندازه کومه ده؟<br>۳ـــ څوک ویلی شي د سر مسح څوومه برخه فرض ده؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان د ټاکلو لپاره پوښتنه کوي لکه اودس په کومو اوبو روا دی؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان «د اوداسه اوبه» په تخته لیکي او بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په پټه خوله ولولي او دی لوست ماده وار په تخته لیکي.<br>او بیا یو زده کوونکی تختې ته راغواړي او لیکل شوی لوست پرې وایي او دی مرسته ورسره کوي. | |
| ۱۰ دقیقې | وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د اوبو په هکله یو د بل څخه پوښتنې وکړي، ښوونکی صحیح او غلط ځوابونه یادښت کوي او پای کې یې نتیجه اعلانوي او زده کوونکو ته درست ځوابونه وایي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي: | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | په لاندې اوبو اودس او طهارت منځ ته راځي:<br>۱ـــ د باران اوبه.<br>۲ـــ د چینو او ویالو اوبه.<br>۳ـــ د څاګانو اوبه.<br>۴ـــ د رود اوبه.<br>۵ـــ د واورې او ږلۍ اوبه.<br>٦ـــ د غټو ډنډونو اوبه.<br>په لاندې اوبو اودس او پاکوالی روا نه دی:<br>۱ـــ د میوو اوبه.<br>۲ـــ د شوربا اوبه.<br>۳ـــ هغه اوبه چې د ونو یا پاڼو څخه لاس ته راغلې وي. تر آخره......<br>**کورنۍ دنده:**<br>لوست دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**اتلسم: لوست**

## عنوان: د اوداسه ماتوونکي

**مخ: ۳۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په ښه توګه ولوستلی شي.
- د اوداسه ماتوونکي وپیژني.
- وپوهېږي چې بې اودسه لمونځ نه کېږي.
- وپوهېږي چې په اوداسه اوسېدل ثواب لري.

**د ځینو کلماتو معناوې:**

نواقض: ماتوونکي

استفراغ: زړه راهسکېدل، قی کول

بیهوشي: بی سده کېدل

**اړینه پوهه:**

**د اوداسه ماتوونکي:**

**۱ـــ له یو دوو لارو څخه څه شی وتل لکه وړوکی اودس ماتی، غټ اودس ماتی، باد، مذی، ودي او مني چې دیته معتاد څیزونه وایي. بل غیر معتاد څیزونه دي لکه جنجی، شګه، وینه، دغه خارج شوی شي لرې وي او که ډیر لکه چې الله فرمایي: (أَوْ جَاء أَحَدٌ مِّنكُم مِّنَ الْغَائِطِ) یعنې راشي یو د تاسو له اودس ماتي څخه.**

**او نبی کریمﷺ فرمایي: (لَا يَقْبَلُ اللَّهُ صَلَاةَ أَحَدِكُمْ إِذَا أَحْدَثَ حتی یتوضأ فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ اَهْلِ حَضْرَمُوْتَ مَا الْحَدَثُ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ؟ قَالَ فُسَاءٌ اَوْ ضُرَاطٌ).**

**یعنې د بې اودسه سړي لمونځ نه قبلیږي څو بې اودس نه وي کړی، د حضرموت له خلکو یوه سړي وویل بی اودسي څه ده اې ابوهریره؟ ده وفرمایل: باد دی: غږ لرونکی یا بې غږه.**

**۲ـــ د سبیلینو څخه پرته د نور بدن څخه د وینو، ژیړو اوبو او زوو وتل دي په شرط ددې چې پاک ځای ته وبهیږي.**

**۳ـــ قی (استفراغ) په ډکې خولې سره، ډکه خوله هغه ده چې خوله نشي پرې پټیدای مګر په تکلف سره.**

**۴ـــ خوب دی په ملاستې وي یا په تکیه یا ډډې سره چې که فرضاً تکیه ورځینې لرې شي او دی ولویږي ځکه د خوب سره حس هم له مینځه ځي. که کوم نفر پلتیِ وهلې ویده وي اودس یې نه ماتیږي.**

**۵ـــ بیهوشي او لیونتوب ځکه عقل زایلیدونکی په هیڅ حال نه پوهېږي. او اغیز یې له خوب څخه هم ډېر سخت دی.**

**۶ـــ په قهقهه خندا سره هم اودس ماتیږي. او قهقهه خندا هغه ده چې د څنګ ملګری یې واوري، خو د بالغ لپاره نه د هلک لپاره، برابره ده دا خندا قصداً وي او که سهواً او په داسې خندې سره زجراً او عقوبةً اودس ماتیږي ځکه دا کار د الله سره د مناجات خلاف کار دی. او د هلک اودس نه ماتوي ځکه هغه د زجر او رټنې اهل نه دی.**

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي مثلاً:<br>۱ــ ځوک ویلای شي چې اودس په کومو کومو اوبو جواز لري؟<br>۲ــ ځوک ویلای شي په کومو اوبو اودس نه کېږي؟<br>۳ــ ایا د میوې په اوبو او شوربا اودس کېدای شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځواب اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي وایي: ایا پوهېږئ اودس په څه شي ماتیږي؟<br>وروسته د لوست عنوان «د اوداسه ماتوونکي» په تخته لیکي او لوست پیلوي، لوست په لوړ آواز سره وایي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي بیا لوست شماره شماره په زده کوونکو لولي او دی ورسره مرسته کوي بیا یو څو زده کوونکي د تختې مخې ته راغواړي څو نور زده کوونکي ورڅخه پوښتنې وکړي. په ځوابونو کې ښوونکی ورسره مرسته کوي. | |
| | بیا د لوست لنډیز ورته وایي: | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۱۰ دقیقې | د اوداسه ماتونکي د امام ابوحنیفه رحمه الله علیه په نزد اووه شیان دي:<br>۱ــ د دوارو شرمځایونو یا د یوه څخه د څه شي وتل.<br>۲ــ د بدن څخه د وینو، زوو او ژیړو اوبو جاري کېدل.<br>۳ــ په ډکه خوله قی کول. | |
| ۵ دقیقې | ۴ــ په ملاستې او یا تکیه وهلو سره ویده کېدل.<br>۵ــ بیهوشي.<br>٦ــ لیونتوب.<br>۷ــ په لمانځه کې قهقهه خندا.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ ایا د زخم څخه په وینه بهیدو اودس ماتیږي؟<br>۲ــ که غاښ وینې شي په کوم صورت کې اودس ماتوي؟<br>۳ــ که ځوک پلتۍ وهلې ویده شي اودس یې ماتیږي که نه؟<br>۴ــ قهقهه خندا کومه خندا ده؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>لوست دې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**نولسم: لوست**

## عنوان: د پنځه ګونو لمونځونو وختونه

**مخ: ۳۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د لمانځه وختونه وپيژني.
- وپوهېږي چې د لمانځه مکروه وختونه کوم دي.
- د استواء او زوال حالتونه وپيژني.
- وپوهېږي چې بې وخته لمونځ نه کېږي.

**د ځينو کلمو معناوې:**

زوال: هغه حالت دی چې له دوولسو بجو څخه وروسته لمر د اسمان له وسط څخه د لویدلو خواته لږ کوږ شي.

شفق: سوروالی

استواء: هغه حالت دی چې لمر بالکل په سر ودرېږي او یوې خواته هم میلان ونه لري.

صبح صادق: رښتینی سبا

**اړينه پوهه:**

**د پنځه ګونو لمونځونو وختونه:**

**۱ــ** د سهار وخت: د رښتيني سهار له پيله تر لمر ختلو پورې، رښتينی سهار هغه سپینوالی دی چې رڼا یې د اسمان په څنډو کې خوره شوې وي.

**۲ــ** د ماسپښين وخت: د لمر له زوال څخه پیل تر دې چې د هر شي سیورى (پرته د اصلي سیوري څخه چې د زوال په وخت کې وي) دوه برابره شي، او جمهور فقهاء وايي چې د هرشي سيورى يو برابر شي. د لمر زوال: د اسمان له نيمايي څخه د لمر لويدلو په لوري کوږوالی دی.

**۳ــ** د مازديګر وخت: کله چې د لماسپښين د لمانځه وخت پای ته ورسېږي پيلېږي او د لمر لويدلو نه لږ مخکې پای ته رسېږي ځکه داسې حديث روايت شوی: (مَنْ أَدْرَكَ مِنْ الصُّبْحِ رَكْعَةً قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الصُّبْحَ وَمَنْ أَدْرَكَ رَكْعَةً مِنْ الْعَصْرِ قَبْلَ أَنْ تَغْرُبَ الشَّمْسُ فَقَدْ أَدْرَكَ الْعَصْرَ).

يعنې که چا د لمر له ختلو مخکې يو رکعت وموند نو ده د سهار ټول لمونځ وموندہ. او که چا د مازديګر يو رکعت مخکې له لمر لويدلو وموند نو ده ټول مازديګر وموندہ.

او اکثره فقهاء وايي چې د لمازديګر لمونځ د لمر په ژيړوالي کې مکروه کېږي. او په دې هکله نبی کريمﷺ فرمايلی دي (تلک صلوة المنافق) يعنې دا د منافق لمونځ دی.

او نبی کريمﷺ فرمايلي دي: (وَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرَّ الشَّمْسُ) د لمازديګر وخت تر دې پورې دی څو لمر ژيړ شوی نه وي.

**۴ــ** د ماښام د لمانځه وخت: په اجماع سره د لمر له لويدو څخه پيلېږي او د جمهورو فقهاوو (احنافو، حنابله وو او د امام شافعي په قديم مذهب د شفق تر لويدلو پورې دی.

نبی کريمﷺ فرمايلي دي: (وَقْتُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ يَغِبْ الشَّفَقُ) يعنې د ماښام د لمانځه وخت د شفق تر ډوبېدو پورې دی.

شفق: د صاحبينو، حنابله وو او شافعيه وو په نزد سوروالی دی ځکه ابن عمر رضي الله عنهما وايي: (الشَّفَقُ: اَلْحُمْرَةُ) او فتوی هم په دې ده.

او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد: شفق هغه سپین والی دی چې د آسمان په کنارو کې استمرار لري او عادتاً له سوروالي وروسته پاتې کېږي له هغه وروسته توروالی ځرګندیږي. او د دواړو شفقونو ترمنځ درې درجې دي او هره درجه څلور دقیقې ده او دلیل یې دغه حدیث دی: و آخرُ وقتِ المغربِ إذا اسودَّ الأُفُقُ.

۵ــ د لماسختن د لمانځه وخت: د مفتي به قول مطابق د سره شفق له ډوبیدو څخه پیل د رښتیني سهار تر راختلو پورې دی.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته زده کوونکي د تیر لوست په اړه ارزوي. مثلاً:<br>۱ــ د اوداسه درې ماتوونکي څوک ویلای شي؟<br>۲ــ د اوداسه پاتې څلور ماتوونکي څوک ویلای شي؟<br>۳ــ څوک ویلای شي چې په کومه توګه ویده کېدل اودس ماتوي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | ۴ــ ایا که چا پلتۍ وهلې وي او ویده شي اودس یې ماتېږي او که نه؟<br>له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي وایي: د لمانځه لپاره وخت څه حکم لري؟ له دې وروسته د نوي لوست عنوان «د پنځه ګونو لمونځونو وختونه» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز سره لولي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي. له دې وروسته لوست په څو تنو زده کوونکو یوه یوه شماره لولي څو ټول په دې وتوانیږي چې لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي. | |
| ۱۰ دقیقې | وروسته زده کوونکي په پنځو ډلو ویشي څو هره ډله د یوه یوه لمانځه د وخت په هکله په خپلو کې بحث او له یو او بل څخه پوښتنې وکړي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي: د سهار د لمانځه وخت د رښتیني سهار څخه پیل د لمر تر راختلو پورې دی. د ماسپښین د لمانځه وخت د لمر له زوال څخه پیل تر دې چې د هر شي سیورى پرته د زوال مهال له اصلي | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | سیوري څخه دوه برابره شي.<br>د مازدیګر د لمانځه وخت د سیوري له دوه چند څخه پیل د لمر تر لویدلو پورې دوام لري.<br>د ماښام لمونځ د لمر له ډوبېدو څخه د شفق تر ورکېدو پورې دی.<br>د لماسختن وخت د شفق له ورکېدو څخه تر رښتیني سهار راختلو پورې دی.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ زوال کوم وخت ته ویل کېږي؟<br>۲ــ استواء راوپیژنئ؟<br>۳ــ رښتینی سهار کوم دی؟<br>۴ــ د شفق ورکېدل څرنګه دي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>لوست په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | ځوابونه وايي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**لوست: شلم**

## عنوان: د لمانځه فرضونه (ارکان)

**مخ: ۴۱**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د لمانځه داخلي فرضونه وپیژني.
- وپوهېږي چې د فرضو په پرېښودلو سره لمونځ نه کېږي.
- د لمانځه د فرضونو نومونه واخلي.
- د فرضو په ارزښت وپوهېږي.
- د لمانځه خارجي فرضونه هم وپیژني.

**د ځینو کلمو معناوې:**

تکبیر تحریمه: هغه تکبیر (الله اکبر) ویل چې ددې په ویلو سره سړی په لمانځه کې داخلېږي او له لمانځه پرته هر څه ورباندې حرامېږي.

وروستی قعده: آخري ناسته

**اړینه پوهه:**

**د لمانځه فرضونه:**

د لمانځه د فرضونو (ارکانو) پوره اداء کولو ته لمونځ ویل کېږي، که د لمانځه له فرضونو (ارکانو) څخه یو فرض پاتې شي لمونځ نه کېږي.

لکه څنګه چې کور له رکن (بنسټ) څخه پرته نشي دریدلای همدارنګه لمونځ له دې ارکانو پرته نه شي اداء کېدای، الله تعالی فرمایي: (حَافِظُواْ عَلَى الصَّلَوَاتِ والصَّلاَةِ الْوُسْطَى وَقُومُواْ لِلّهِ قَانِتِينَ) البقرة/ ۲۳۸.

ساتنه کوئ تاسو پرتولو لمونځونو باندې (په ځانګړې توګه) په منځني (مازدیګر) لمانځه باندې او ودرېږئ تاسې الله تعالی ته ویریدونکي (په ادب سره).

ځینو فقهاوو د لمانځه فرضونه دوه ډوله ګڼلي دي: شرطونه او رکنونه.

شرطونه د لمانځه څخه بیرون وي لکه پاکوالی (د بدن، جامو او ځای) ستر عورت، قبلې ته مخ کول، وقت او د لمانځه نیت.

او رکنونه په لمانځه کې دننه دي لکه تکبیراولی، قیام، قرائت، رکوع، سجده او وروستنی قعده د تشهد په اندازه او د لمانځه څخه وتل (سلام ګرځول).

له عمران بن حصین‌رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله‌ﷺ وفرمایل: (صَلِّ قَائِمًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَقَاعِدًا فَإِنْ لَمْ تَسْتَطِعْ فَعَلَى جَنْبٍ). یعني لمونځ په ولاړه وکوه که دې په ولاړه توان نهٔ نو په ناستې یې وکوه او که د ناستې توان دې نه درلود نو په اړخ څمله او لمونځ وکوه. هدف داچې د قادر لپاره قیام فرض دی.

په بل ځای کې نبی کریم‌ﷺ فرمایي: (صَلَاةُ الْقَاعِدِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ صَلَاةِ الْقَائِمِ). یعنې د ناستې لمانځه ثواب د ولاړې د لمانځه د ثواب نیمایي دی.

د قرائت په هکله الله تعالی فرمایي: (فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ) ولولئ له قرآن څخه څومره چې درته آسانه وي.

د ابوهریره بل حدیث دی فرمایي: (لَاصَلَوةَ اِلَّابِقِرَاءَةٍ).

او په څلور رکعتي فرضو کې په دوو اولو رکعتونو کې د قرائت لوستل فرض دي په دوه نورو کې یوازې فاتحه کفایت کوي.

| د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیت | وخت |
|---|---|---|
| مقدماتي چارې ترسره کوي. | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته زده کوونکي د تیر لوست په هکله ارزوي. مثلاً:<br>۱ـــ څوک ویلای شي د سهار د لمانځه وخت له کومه وخته پیل او څه وخت ختمېږي؟<br>۲ـــ د ماسپښین د لمانځه اول او آخر وخت څوک ویلی شي؟<br>۳ـــ د ماښام د لمونځ وخت له کومه وخته تر کومه وخته پورې دی؟ | ۵ دقیقې |
| په لوست کې فعاله ونډه اخلي. | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي مثلاً وایي: ایا سالم سړی فرض لمونځ پر کیناستو کولای شي؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د لمانځه فرضونه (ارکان)» په تخته لیکي او بیا زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په پټه خوله د کتاب له مخې ولولي، وروسته بیا څو زده کوونکي په نوبت سره د تختې مخې ته راغواړي او لوست ورباندې لولي. بیا زده کوونکي په اوو ډلو ویشي څو هره ډله د یوه یوه فرض په هکله په خپلو کې بحث وکړي او بیا یو د بل څخه پوښتنې وکړي. بیا عملاً یو زده کوونکي په لمانځه دروي او هر څه عملاً پرې اجراء کوي خصوصاً رکوع او سجده عملاً ورښيي، رکوع باید داسې وشي چې ګونډې په لاسونو ټینګې ونیول شي او ملا ښه برابره شي څو سر او کوناټي سره برابر شي او لاسونه چې ګونډې پرې نیسي لاسونه هم باید شه شخ ونیسي. | ۲۵ دقیقې |
| لنډیز ته غوږ نیسي. | بیا د لوست لنډیز ورته وایي:<br>د لمانځه داخلي فرضونه (ارکان) اووه دي او شرطونه یې هم ځینو علماوو اووه او ځینو شپږ ښودلي دي.<br>ارکان: تکبیر تحریمه، قیام (دریدل)، قرائت ویل (له فاتحې څخه وروسته د قرآن څه برخه ویل)، رکوع، سجده، ورستنۍ ناسته تر تشهد پورې او سلام ګرځول.<br>شرطونه: د بدن، جامو او ځای پاکولی، د عورت پټول، قبلې ته مخ کول، وخت او د لمانځه نیت. | ۱۰ دقیقې |
| ځوابونه وایي. | **ارزونه:**<br>۱ـــ د لمانځه فرضونه (ارکان) څو دي نومونه یې واخلئ؟<br>۲ـــ د لمانځه د شرطونو نومونه واخلئ؟<br>۳ـــ په بله وینا داخلي او بیروني فرضونه کوم کوم دي؟ | ۵ دقیقې |
| کورنۍ دنده ترسره کوي. | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د لمانځه (ارکان) حفظ کړي. | |

## يو ويشتم: لوست

## عنوان: وتر لمونځ

**مخ: ۴۲**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په سمه توګه ولوستلي شي.
- د وتر د لمانځه حکم وپیژني او په ثواب يې خبر شي.
- وپوهېږي چې د وتر لمونځ څو رکعته دی.
- د قنوت د دعا لوستلو ځای په وترو کې وپیژني.
- وتر لمونځ عملاً ادا کړی شي.
- د وتر په معنا پوه شي.

**د ځینو کلمو معناوې:**

وتر: طاق

تکبیر: الله اکبر ویل

قنوت: فرمانبرداري، عاجزي

**اړینه پوهه:**

له حضرت علیﷺ څخه روایت شوی وايي (الْوِتْرُ لَيْسَ بِحَتْمٍ كَصَلَاتِكُمْ الْمَكْتُوبَةِ وَلَكِنْ سَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ إِنَّ اللَّهَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ فَأَوْتِرُوا يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ)

یعنې وتر د فرضي لمانځه په شان حتمي او ضروري نه دي، لاکن نبی کریمﷺ هغه مقرر کړي دي یقیناً الله تعالی وتر (یو) دی او وتر خوښوي نو ای قرآن والو وتر اداء کړئ.

(وعن ابن عمر رضي الله عنهما عن النبیﷺ قَالَ اِجْعَلُوا اَخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْراً) نبی کریمﷺ فرمايي: وتر د شپې ورستنی لمونځ وګرځوئ. یعنې نوافل له وترو څخه مخکې وکړئ او په پای کې يې وتر اداء کړئ.

او له حضرت جابرﷺ څخه روایت دی چې نبی کریمﷺ فرمايي: که څوک ویرېږي چې د شپې په ورستۍ برخه کې به ویښ نشم نو وتر دې د شپې په اوله برخه کې وکړي او که (د عادت له مخې) پوهېده چې د شپې په وروستۍ برخه کې ویښېدای شم نو د شپې په وروستۍ برخه کې دې وتر وکړي ځکه د شپې په وروستۍ برخه لمانځه کې ملایکې حاضرېږي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً:<br>۱ــ د لمانځه فرضونه څوک ویلی شي؟<br>۲ــ د لمانځه داخلي فرضونو ته څه ویل کېږي؟<br>۳ــ څوک ویلای شي که په لمانځه کې یو فرض پاتې شي لمونځ څرنګه | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br><br><br><br>په لوست کې فعاله ونډه |

| وخت | فعالیتونه | ارزونه |
| --- | --- | --- |
| ۲۵ دقیقې | کېږي؟<br>د ځوابونو له اوریدو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کوي وایي: د قنوت دعا په کوم لمانځه کې ویل کېږي؟ | اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | له دې وروسته د نوي لوست عنوان «د وتر لمونځ» په تخته لیکي او لوست په لوړ غږ سره پیلوي او زده کوونکي یې ورپسې تکراروي وروسته په یوه یوه زده کوونکي لوست وایي او ستونزمنې کلمې ورته شرح کوي. بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د لوست په هکله په خپلو کې د سوال او ځواب په توګه بحث وکړي او هر زده کوونکی د لوست په لوستلو وتوانېږي. | |
| ۵ دقیقې | بیا ښوونکی د لوست لنډیز ورته وایي:<br>وتر لمونځ درې رکعته دی اداء کول یې واجب دي.<br>دغه لمونځ ټول ډک اداء کېږي او په دریم رکعت کې له فاتحې او سورت څخه وروسته لاسونه تر غوږونو پورې د الله اکبر په ویلو سره پورته کېږي او وروسته د قنوت دعا وایي. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| | **ارزونه:**<br>۱ـــ د وتر لمونځ څو رکعته دی؟<br>۲ـــ د وتر لمانځه حکم څه دی؟<br>۳ـــ د وتر لمانځه د اداء کولو وخت کوم دی؟<br>۴ـــ په وتر لمانځه کې څه وخت د قنوت دعا لوستل کېږي؟<br>۵ـــ که وتر لمونځ د شپې آخره برخه کې وشي څه حکم لري؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. او د کتاب ارزونه دې هم حل کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دوه ویشتم، درویشتم، څلرویشتم، پنځه ویشتم: لوستونه

## عنوان: د قنوت دعا

**مخ: ۴۷ــ ۵۴**

**وخت: څلور درسي ساعتونه**

**موخې: زده کوونکی باید:**

- د قنوت دعا د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د قنوت دعا حفظ کړای شي.
- د دې دعا په اجمالي مفهوم وپوهېږي.
- وپوهېږي چې دا دعا څه وخت لوستل کېږي.

**اړینه پوهه:**

ژباړه: اللَّهمَّ إنَّا نستعينُكَ: ای الله موږ له تا څخه مرسته غواړو.

ونستغفِرُكَ: او له تا څخه بښنه غواړو.

ونؤمنُ بك: او په تا ایمان راوړو.

ونَتَوَكَّلُ عَلَيْكَ: او پر تا تکیه او توکل کوو.

ونُثني عَليكَ الخيرَ: او ستا د خیر ښېګڼه او ستاینه کوو.

وَنَشْكُرُكَ: او ستا شکر اداء کوو.

ولا نَكْفُرُكَ: او ستا ناشکري نه کوو.

ونَخلَعَ ونَتْرُكُ مَنْ يَّفْجُرُكَ: او لرې کوو او پرېږدو هغه څوک کوم چې ستا نافرماني کوي.

اللَّهمَّ إيَّاكَ نَعبُدُ: ای الله موږ یوازې ستا عبادت کوو.

ولَكَ نصلِّي ونَسجُدُ: او یوازې ستا لپاره لمونځ کوو او سجده کوو.

وإليكَ نَسعَى ونَحفِدُ: او یوازې ستا لور ته منډې وهو او خدمت ته حاضرېږو.

ونَرجو رَحمَتَكَ: او یوازې ستا د رحمت هیله لرو.

ونَخشَى عذابَكَ: او ستا له عذابه وېرېږو.

إنَّ عذابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلحِقٌ: بیشکه ستا عذاب کافرانو ته رسیدونکی دی.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې<br><br>۲۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلی شي چې وتر لمونځ څه حکم لري؟<br>۲ــ څوک ویلی شي چې وتر لمونځ څو رکعته دی؟<br>۳ــ څوک ویلی شي چې د قنوت دعا د وتر لمانځه په کوم وخت کې ویل کېږي؟<br>له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو په هکله پوښتنه کېږي: ایا د قنوت دعا پیژنئ؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان «د قنوت دعا» په تخته لیکي او لوست په لوړ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br><br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| | | |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې<br><br>۵ دقیقې | آواز سره پیلوي او زده کوونکي يې ورپسې وايي. بیا له زده کوونکو څخه په نوبت سره غواړي څو د تختې مخې ته راشي او لوست ولولي.<br>بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو دغه دعا په ټولیزه توګه ووايي او حفظ یې کړي، له دې وروسته زده کوونکي یو د بل څخه پوښتنې کوي او ښوونکی یې ځوابونه یاد داشت کوي په پای کې د پوښتنو نتیجه څرګندوي او سم ځوابونه ټولګیوالو ته وړاندې کوي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته وايي او دا ورپه ګوته کوي چې ددې دعا یادول له ضروریاتو څخه دي باید هر زده کوونکي یې یاد کړي او دیته د قنوت دعا ویل کېږي.<br>قنوت: د عاجزۍ او فرمان بردارۍ په معنا سره دی.<br>په دې دعا کې هم الله ته عاجزي ده هم ورڅخه د ښښنې غوښتنه ده او هم دا پکې ذکر شوي چې موږ خاص تاته عبادت کوو خاص په تا ایمان لرو او خاص په تا توکل او بروسه کوو او ستا د نعمتونو شکریه کوو او د نعمتونو کفران دې نه کوو او څوک چې ستا نافرماني او ناشکري کوي د هغو نه بیزاري غوره کوو او خاص ستا رحمت ته هیله من یو او ستا د عذاب څخه ویریږو.<br><br>**ارزونه:**<br>۱ـــ د قنوت دعا څوک د کتاب له مخې ویلای شي؟<br>۲ـــ د قنوت دعا څوک له یاده ویلی شي؟<br>۳ـــ د قنوت دعا په کوم لمانځه کې ویل کېږي؟<br>۴ـــ د قنوت دعا د وترو په کوم حالت کې ویل کېږي؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>د کتاب ارزونه حل کړئ او لوست په خپلو کتابچو کې ولیکئ. | لنډیز ته غوږ نیسي.<br><br>ځوابونه وايي.<br><br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## شپږ ویشتم: لوست
## عنوان: د جمع لمونځ

**مخ: ۵۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- د جمع د لمانځه په فضیلت او غوره والي وپوهېږي.
- لمونځونه په جمع اداء کړي.
- د جمع د لمانځه اداء کولو په طریقه پوه شي.

**اړینه پوهه:**

**د جمع لمونځ:**

د ډیرو علماوو او فقهاوو په نزد د نارینه وو جماعت سنت مؤکد دی، پرته له عذره یې پرېښودل روا نه دي الله تعالی فرمایي: (وَارْكَعُواْ مَعَ الرَّاكِعِينَ) البقرة ۴۳. یعنې رکوع وکړئ سره له رکوع کوونکو. (لمونځ کوونکو مسلمانانو سره) ددې آیت څخه د جماعت د لمونځ ثابتیږي او د لمانځه څخه یې په رکوع تعبیر کړی دی او د یهودیانو په لمانځه کې رکوع نه وه.

نبی کریمﷺ فرمایلي دي: «صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً».

یعنې په جماعت سره لمونځ اداء کول له یوازې اداء کولو څخه اووه ویشت ځلې غوره ثواب لري.

په بل حدیث کې رسول اللهﷺ فرمایي: « الجَمَاعَةُ مِنْ سُنَنِ الهُدي لَا يَتَخَلَّفُ عنها إلا مُنَافِقٌ».

یعنې د جمع لمونځ له مؤکدو سنتو څخه دی له هغه څخه مخ نه اړوي مگر منافق.

ځینې فقهاء کرام او مشایخ د جماعت لمونځ واجب گڼي او دغه حدیث دلیل نیسي: زما دې په هغه ذات قسم وي چې زما نفس او ځان د هغه په اختیار کې دی، ځو ځله مې دا اراده کړی ده چې امر وکړم ځو ډیر خس او خاشاک راجمع کړي او زه چا ته په لمانځه امر وکړم چې هغه لمونځ ورکړي او زه د هغو کسانو کورونو ته اور واچوم چې په کورونو کې لمونځونه کوي.

او بل د جماعت لمانځه فضیلت ددې څخه هم معلومېږي چې د جهاد او جنگ په مهال هم نبی کریمﷺ مجاهدین دوه ډلې کړي او په دوی یې لمونځ په جماعت سره ادا کړی دی، نیم لمونځ یې په یوه ډله او نیم نور یې د بلې ډلې سره اداء کړی دی.

همدارنگه له ابوهریرةﷺ څخه روایت دی چې رسول اللهﷺ وفرمایل: د سړي لمونځ په جماعت سره د کور او یا بازار له لمانځه څخه (۲۵) درجې زیات ثواب لري، ځکه کله چې اودس وکړي او په ښه توگه یې وکړي او د جومات په لوري روان شي کوم بل مطلب ونه لري نو په هر قدم یې یوه درجه زیاتیږي او یوه گناه ورځینې کمېږي او کله چې لمونځ وکړي پرښتې دعا ورته کوي ترڅو چې د لمانځه په ځای کې وي او بې اودسه نشي نو پرښتې په دعا کې ورته وایي اللهم صل علیه اللهم ارحمه: ای الله په هغه درود ووایه او په هغه رحمت وکړه. او هغه څوک چې د لمانځه انتظار کوي هغه د لمانځه ثواب مومي او حتی نبی کریمﷺ هغه ړانده ته هم اجازه د کور لمانځه ورنکړه کوم چې هغه آذان اوریده. همدارنگه له ابودرداءﷺ څخه روایت دی وایي د رسول اللهﷺ څخه مې اوریدلي چې فرمایل یې هیڅ داسې درې تنه په کلي یا دښته کې شتون نلري

چې په دوی کې لمونځ اقامه نشي مګر داچې شیطانورباندې غالبیږي نو په تاسې لازم دي چې لمونځ په جماعت سره اداء کړئ ځکه لیوه د رمې نه بیل او لرې پسه تښتوي.

هدف داچې پرته له عذره د جماعت پریښول ددې سبب کیږي چې شیطان ورباندې غالبیږي او شیطاني وسوسې وراچوي او په دې کار سره د مسلمانانو یووالی هم له منځه ځي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی د مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ـــ د قنوت دعا څوک له یاده ویلی شي؟<br>۲ـــ د قنوت دعا په کوم لمانځه کې ویل کیږي؟<br>۳ـــ څوک ویلی شي د قنوت دعا د وترو په کوم ځای او څه وخت کې ویل کیږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي وایي: په تاسو کې څوک لمونځ په جمع کوي؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د جمع لمونځ» په تخته لیکي او لوست په لوړ غږ پیلوي، زده کوونکي هم لوست په لوړ غږ وروسته تکراروي. وروسته یې په زده کوونکو ټوټه ټوټه لولي او غلطۍ یې ور اصلاح کوي. وروسته څو زده کوونکي په نوبت سره تختې ته راغواړي او څو کلمې لکه لمونځ، ماسپښین، جهر، قرائت او داسې نورې کلمې ورباندې لیکي څو د املا سره روږدي شي. | |
| ۱۰ دقیقې | وروسته د لوست لنډیز ورته وایي: د جمع لمونځ د یوازې لمانځه په پرتله ۲۵ یا ۲۷ درجې غوره والی لري، د ماسپښین او مازدیګر لمونځونه خفیه (ورو) اداء کیږي او د ماښام، ماخستن او سهار لمونځونه په جهر (په زوره) اداء کیږي، په جهري لمونځونو کې د امام قرائت ته غوږ نیسو او د جمع په لمانځه کې حکمت دادی چې د خلکو له حال احوال څخه خبریږو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ د جماعت د لمانځه غوره والي په هکله نبی کریمﷺ څه فرمایلي دي؟<br>۲ـــ د جمع په لمانځه کې څه حکمت لیدلی شئ؟<br>۳ـــ څوک په جمع لمونځ اداء کوي ګوته پورته کړئ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د کتاب ارزونه هم حل کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## اووه ويشتم: لوست

## عنوان: صف تړل

**مخ: ۵۷**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د صف تړلو په هکله د حديث مفهوم وويلی شي.
- پوه شي چې د صفونو نه برابرول د حسد او نفاق لامل ګرځي.
- په دې وپوهېږي چې صف برابرول د لمانځه له جملې څخه دي.
- په عملي توګه د لمانځه صفونه وتړلی شي.

**د ځېنو کلمو معناوې:**

صف: لين

حسد: کينه

نفاق: منافقت، بې اتفاقي

لامل: سبب

**اړينه پوهه:**

**صف تړل:**

له جابر بن سمرة رضي الله عنهما څخه روايت دی وايي: (خَرَجَ عَلَيْنَا فَقَالَ أَلَا تَصُفُّونَ كَمَا تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ وَكَيْفَ تَصُفُّ الْمَلَائِكَةُ عِنْدَ رَبِّهَا قَالَ يُتِمُّونَ الصُّفُوفَ الْأُوَلَ وَيَتَرَاصُّونَ فِي الصَّفِّ) رواه مسلم.

ژباړه: وايي نبی کريمﷺ پر موږ راووت او ويې فرمايل: ولې د پرښتو په شان د الله په وړاندې صفونه نه تړئ، موږ وويل يا رسول الله! پرښتې د الله په وړاندې څرنګه صفونه تړي؟ ويې فرمايل: لومړي صفونه بشپړوي او په نظم سره په صفونو کې دريږي يعنې خالي ځای يې په منځ کې نه پاتې کېږي.

د ابوهريرةﷺ څخه روايت دی چې رسول اللهﷺ وفرمايل: که خلک پوه شي چې په آذان او لومړي صف کې څومره ښېګڼه او ثواب دی نو له پچې اچولو پرته به چا نه مونده حتماً به يې پچه ورته اچوله.

په بل حديث کې راځي د نارينه وو غوره صفونه لومړنی صف دی او بد تر صف يې وروستنی صف دی او د ښځو غوره صف آخري صف دی او تر ټولو بد يې لومړی صف دی.

(و عن انسؓ قال، قال رسول اللهﷺ سَوُّوا صُفُوفَكُمْ فَإِنَّ تَسْوِيَةَ الصَّفِّ مِنْ تَمَامِ الصَّلَاةِ) متفق عليه.

يعنې نبی کريمﷺ فرمايلي دي خپل صفونه برابر کړئ ځکه د صفونو برابرول د لمانځه د بشپړيدو له جملې څخه دي.

په بل حديث کې فرمايي: نعمان بن بشير رضي الله عنهما روايت کوي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: اورمرو به تاسو يا صفونه برابروئ يا داچې الله به ستاسو په منځ کې اختلاف واچوي.

داسې روايت هم راغلی چې ملايکې په لومړنيو صفونو درود او رحمتونه وايي، او په بل روايت کې د امام د ښي خوا په صفونو درود وايي.

په بل روایت کې د ابوهریرةﷺ په روایت فرمایي: چې امام په وسط کې وګرځوئ او خالیګاوې بندې کړئ.

په بل روایت کې فرمايي: د صفونو خالیګاوې بندې کړئ په الله قسم شیطان زه وینم چې د واړه تور وري په شان صفونو ته داخلیږي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې کله له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو بیا د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلی شي چې د جمع لمونځ څه حکم لري؟<br>۲ــ د جمع لمونځ ولې مؤکد سنت دی؟<br>۳ــ د جمع لمونځ د یوازې لمانځه په پرتله څو درجې غوره والی لري؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره ښوونکی پوښتنه کوي وایي: د جماعت په لمانځه خلک څرنګه ودریږي؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان (صف تړل) په تخته لیکي او لوست پیلوي لوست په لوړ غږ سره وایي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي، وروسته یې په زده کوونکو باندې وایي او ځینې کلمې لکه صف، حسد، نفاق او داسې نورې ورته شرح کوي.<br>وروسته په ټولګي کې د صف عملي بېلګه ورښیي او زده کوونکي په صف دروي څو د دوی پښې او اوږې سره برابرې شي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته یو یو زده کوونکی د تختې مخې ته راغوړي او د لوست یوه یوه ټوټه پرې لولي څو ټول د لوست په لوستلو وتوانیږي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي:<br>نبی کریمﷺ فرمایلي دي د صفونو سم برابرول د لمانځه له جملې څخه دي، | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | په لمانځه کې باید صفونه ښه برابروي څو شیطان په منځ کې خپل شیطانت ونکړي او څومره چې صفونه برابر او یو د بل سره نږدې وي په همغه اندازه د مسلمانانو په منځ کې مینه پیداکیږي او کینه او دښمني له منځه ځي. او په سم صف سره لمونځ بشپړیږي. باید یو د بل سره د پښو ګوتې او اوږې برابرې کړو او په صف کې باید اول لویان بیا هلکان ودریږي.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ د صف تړلو او برابرولو په هکله نبی کریمﷺ څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د صفونو په برابرولو کې حکمت او ګټه څه ده؟<br>۳ــ د صفونو په نه برابرولو کې څه تاوان لېدل کېږي؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>لوست دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او د درسي کتاب ارزونه دې حل کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## اته ویشتم: لوست

## عنوان: د مسجد اداب

**مخ: ٦١**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې په ښه توګه ولوستلی شي.
- د لوست ستونزمنې کلمې معنا کړی شي.
- د جومات آداب وپيژني.
- جومات ته د ننوتلو او وتلو دعاوې حفظ کړي.
- وپوهېږي چې جوماتونه د عبادت ځايونه دي.

**د ځينو کلمو معناوې:**

**اللهم افتح لی ابواب رحمتک: ای الله ماته د خپل رحمت دروازې پرانېزه.**

**اللهم انی اسئلک من فضلک ورحمتک: ای الله زه ستا څخه ستا د فضل او رحمت غوښتنه کوم.**

**اړينه پوهه:**

**د مسجد آداب:**

**له حضرت ابوهريرهؓ څخه روايت دی وايي رسول اللهﷺ فرمايي: (أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللَّهِ مَسَاجِدُهَا وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللَّهِ أَسْوَاقُهَا) رواه مسلم.**

**يعنې الله ته ډېر خوښ ځايونه د ښارونو جوماتونه دي او ډېر ناوړه ځايونه د ښارونو بازارونه دي.**

**همدارنګه ابی اسيدؓ روايت کوي چې رسول اللهﷺ فرمايي: (إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ الْمَسْجِدَ فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَإِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ) رواه مسلم.**

**يعنې کله چې له تاسو څخه څوک جومات ته داخل شو نو ودې وايي: ای الله د رحمت دروازې دې زما لپاره پرانيزه او کله چې له جومات وځي، نو ودې وايي: ای الله زه ستا د فضل غوښتنه کوم. او ابی قتادهؓ د رسول اللهﷺ څخه روايت کوي وايي: (إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَجْلِسَ) يعنې کله چې څوک له تاسو نه جومات ته داخل شي، نو مخکې له کيناستلو دې دوه رکعته لمونځ (نفل) اداء کړي. (البته که مکروه وخت نه وي).**

**همدارنګه نبی کريمﷺ فرمايي کله چې مو پياز يا بل بوی لرونکی څيز خوړلی وي نو جومات ته دې نه ځي ځکه ملايکو ته هم د هر هغه څه نه ضرر رسېږي د کومو نه چې انسانانو ته رسېږي.**

**او د جوماتونو له ادبونو څخه دا هم ده چې بايد په جوماتونو کې چټل شيان ونه غورځوو لکه لاړې، يزه سونړول او داسې نور...**

**او انسؓ د نبي کريمﷺ څخه روايت کوي چې (إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ أَنْ يَتَبَاهَى النَّاسُ فِي الْمَسَاجِدِ) رواه ابوداود ونسايي.**

**يعنې د قيامت له نښو څخه داده چې خلک په جوماتونو يو په بل فخر او وياړ کوي. او بيا د افسوس خبره داده چې په چندو او درويزو يې جوړوي کاشکې په خپلو مصرفونو يې جوړولئ.**

**همدارنګه د جومات له ادبونو څخه دا هم ده چې بايد دنيوي خبرې پکې ونشي ان تر دې چې رسول اللهﷺ فرمايلي دي که څوک د خپل ورک شوي شي اعلان په جومات کې کوي نو ورته ووايئ چې الله يې دې نه درپيدا کوي ځکه جوماتونه ددې لپاره نه دي جوړ شوي.**

| وخت | د ښوونکی فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې کله له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو د تير لوست په هکله د زده کوونکو ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ـــ څوک ويلای شي چې په جماعت کې د صف برابرول څه ګټې لري؟<br>۲ـــ څوک ويلای شي چې د صف نه برابرول د څه شي لامل کېږي؟<br>۳ـــ صف بايد څنګه برابر شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي مثلاً جومات ته په څه طريقه بايد ننوځو؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان «د مسجد آداب» په تخته ليکي او زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست د ځانونو سره په پټه خوله ولولي او دی د لوست مهمې کلمې او جملې په تخته ليکي لکه (اَللهُمَّ افْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ) (اللهمَّ إِنِّي أَسأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ و رَحْمَتِكَ).<br>بيا دغه جملې ورته ژباړي او لوست په لوړ آواز پيلوي او زده کوونکي يې هم ورپسې تکراروي، بيا يې په څو زده کوونکو په نوبت سره په لوړ غږ وايي او ځينې کلمې ورباندې په تخته ليکي البته د املا په توګه. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | بيا ورته د لوست لنډيز بيانوي او ورته وايي بايد هر مسلمان د جومات آداب مراعات کړي، جومات ته په سنت طريقه ننوځي او په سنت طريقه ورځېنې راووځي کله چې جومات ته داخلېږو که مکروه وخت نه وي بايد دوه رکعته تحية المسجد لمونځ اداء کړو. او بايد په جومات کې دنيوي خبرې ونکړو ان تر دې نبی کريمﷺ فرمايي که چا د ورک شي اعلان په جومات کې وکړ نو ورته ووايئ چې الله يې دې نه در پيداکوي. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ جومات ته د داخلېدو دعا کومه ده؟<br>۲ـــ د جومات نه د وتلو دعا کومه ده؟<br>۳ـــ که مکروه وخت نه وي جومات ته په داخلېدو بايد څه وکړو؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>لوست بايد په ښه توګه په خپلو کتابچو کې وليکي او د کتاب ارزونه حل کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## نه ویشتم: لوست

## عنوان: د اودس ماتي اداب

**مخ: ٦٣**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د اودس ماتي آداب مراعات کړی شي.
- د اودس ماتي مسنونه دعاوې حفظ کړی شي.
- وپوهېږي چې د اودس ماتي څخه وروسته استنجاء څرنګه او په کوم لاس وکوي.
- اودس ماتي ته د کیناستو طریقه ویپژني او ډیر ځان لوڅ نکړي.

**د ځینو کلمو معناوې:**

بیت الخلاء: د خالي کېدو اتاق (تشناب)، کیناراب

**اللَّهُمَّ إِنِّي:** ای الله بیشکه زه

**أَعُوذُ بِكَ:** پناه غوارم په تا سره

**مِنْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ:** له نارینه او ښځینه شیطانانو څخه او اصل معنا د خبث پلیتي ده.

**غُفْرَانَكَ:** ستا نه ښښنه غوارو (أَطْلُبُ غُفْرَانَکَ) .

نجاست: پلیتي

**اړینه پوهه:**

له حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: کله چې رسول الله ﷺ بیت الخلاء ته ننوتلو ویل به یې (اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ).

او چې کله به له بیت الخلاء څخه راوتلو نو ویل به یې (غُفْرَانَكَ) یا به یې ویل: (الحمد لله الذی اذهب عنی الاذی وعافانی).

یعنې کامله صفتونه هغه الله لره دي چې زما څخه یې تکلیف لرې کړ او عافیت یې را په برخه کړ.

همدارنګه له مغیره بن شعبة رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: (أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا ذَهَبَ الْمَذْهَبَ أَبْعَدَ)یعنې کله به چې نبی کریم ﷺ اودس ماتي ته تلو نو ښه به لرې تللو.

(عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ :إِذَا أَتَيْتُمْ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا وَلَكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا)یعنې کله چې صحرا ګشت یا اودس ماتولو ته ولاړئ نو قبلې ته مخ مه کوئ او مه شا وراړوئ او بلکې د ختیځ او لویدیځ په لوري کینئ.

خو دا شرق او غرب په سعودي کې صحیح کېږي ځکه هلته د مدینې قبله د جنوب په لوري ده. اما دلته زموږ قبله د غرب په لوري ده نو موږ باید د شمال او جنوب په لوري اودس ماتی وکړو.

همدارنګه د سعید الخدری رضي الله عنه څخه روایت دی وایي د اودس ماتي په وخت کې باید خبرې ونشي. او په بل حدیث کې راځي چې په اودس ماتي کې باید ځان په ستر کې وساتل شي، جامې ډېرې جګې نشي.

(عَنْ سَلْمَانَ قَالَ: قِيلَ لَهُ: قَدْ عَلَّمَكُمْ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى الْخِرَاءَةَ قَالَ: فَقَالَ: أَجَلْ لَقَدْ نَهَانَا أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ بِعَظْمٍ) صحیح مسلم.

يعنې: له حضرت سلمانﷺ څخه روايت دى، ده ته وويل شول ستاسو نبي تاسو ته هر څه ښودلي دي ان تر اودس ماتي پورې، نو ده وويل بلې مورږ يې ددې نه منع کړي يو چې د لوى او واړه اودس ماتي په مهال قبلې ته مخ کړو او له دينه چې په ښي لاس استنجا وکوو او له دينه چې له دريو تېږو کم استعمال کړو او له دينه چې په خوشايو او هډوکو استنجا وکوو.

| وخت | د ښوونکي فعاليت | د زده کوونکو فعاليتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقيقې | ښاغلى ښوونکى د مقدماتي چارو څخه وروسته د تير لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ـــ جومات ته د داخليدو او وتلو دعاوې څوک ويلى شي؟<br>۲ـــ د جومات آداب څوک ويلى شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقيقې | له ځوابونو اوريدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د اودس ماتي آداب» پر تخته ليکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د ځانونو سره مطالعه کړي، دى په خپله د لوست مهمې کلمې او د کناراب د داخليدو او وتو دعاوې په تخته ليکي مثلاً: (اللهمَّ إنِّي أعوذُ بِكَ منَ الخُبُثِ والخَبائِثِ) او د وتلو دعا: (غفرانک) او يا (الحمدُ للَّهِ الَّذي أذهبَ عنِّي الأذَى وعَافَاني).<br>بيا لوست ورته په لوړ آواز لولي او زده کوونکي يې ورپسې تکراروي. او بيا يو يو زده کوونکى د تختې مخې ته راغواړي او لوست پرې وايي او بيا څه کلمې وربانديې د املا په توګه پر تخته ليکي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقيقې | بيا ورته د لوست لنډيز وايي: بيت الخلاء ته بايد په سنت طريقه ننوځو او په سنت طريقه ورځيني راووځو. په قبله کيننو او نه شا قبلې ته واړوو ـــ په ننوتو کې کينه پښه اول ننباسو او په راوتو کې ښى پښه اول راوباسو. په اودس ماتي کې بايد خبرې ونکړو او استنجاء اول په لوټه يا تېږه او يا د تشناب په کاغذ بايد وشي او وروسته بيا په اوبو ووينځل شي. | لنډيز ته غوږ نيسي. |
| ۵ دقيقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ بيت الخلاء ته په کومه دعا او په کومه پښه بايد ننوځو او په کومه دعا او کومه پښه ورځيني راووځو؟<br>۲ـــ د بيت الخلاء نور ادبونه ذکر کړئ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې وليکي او د کتاب ارزونه دې هم حل کړي. | ځوابونه وايي.<br><br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دیرشم: لوست

## عنوان: د مسلمان اخلاق

**مخ: ٦٥**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- وپوهېږي چې پیغمبرﷺ د ښو اخلاقو د بشپړولو لپاره رالېږل شوی دی.
- وپوهېږي چې اخلاق دادي چې یو مسلمان نارینه په بل مسلمان نارینه او یوه مسلمانه ښځه په بله مسلمانه ښځه باندې ملنډې ونه وهي.
- درک کړي چې مسلمان بدویونکی، بد کرداره او غیبت کوونکی او تور پورې کوونکی نه وي.
- د اخلاقو نمونه او بیلګه وي.

**د ځینو کلمو معناوې:**

غیبت: غیبت په مسلمان پسې پسې شا هغه خبرې دي چې مخامخ یې نه خوښوي.

جاسوسي: د چا پټ رازونه بربنډول.

**اړینه پوهه:**

**اخلاق:**

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی وایي ما د رسول اللهﷺ څخه اوریدلي دي چې فرمایل یې: (إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُسْتَدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ قَائِمِ اللَّيْلِ صَائِمِ النَّهَارِ) رواه ابوداود.

یعنې مؤمن په نیک خوی سره داسې درجه مومي لکه ټوله شپه چې عبادت کوي او ټوله ورځ روژه وي.

همدارنګه حضرت ابوهریرهﷺ د رسول اللهﷺ څخه روایت کوي چې رسول اللهﷺ فرمایلي دي (أکملُ المؤمنین إیماناً أحسنُهم خُلُقاً). رواه ابوداود.

یعنې تر ټولو بشپړ او مکمل ایمان واله هغه دي چې خوی یې ډیر ښه وي.

همدارنګه نبی کریمﷺ فرمایي: هر دین لره اخلاق دي او د اسلام اخلاق حیاء ده. رواه مالک مرسلاً.

(قال رسول اللهﷺ: « إِنَّمَا بُعِثْتُ لأُتَمِّمَ مَكَارِمَ الأَخْلاَقِ »).

رسول اللهﷺ فرمایلي دي پرته له شکه زده ددې لپاره پیغمبر رالېږل شوی یم څو ښایسته اخلاق بشپړ کړم. یعنې زه د نیکو اخلاقو د تکمیل لپاره رالېږل شوی یم.

یوه ورځ یو تن رسول اللهﷺ ته راغی او پوښتنه یې وکړه دین څه دی؟ ده مبارک وفرمایل نیک خوی بیا د ښي له لوري راغی او پوښتنه یې وکړه دین څه دی؟ ده وفرمایل: نیک خوی. بیا د چپ له لوري راغی همدا سوال او ځواب وشو بیا د شا له لوري راغی او ویې ویل دین څه دی؟ رسول اللهﷺ ورته وفرمایل: ایا نه پوهېږې چې دین دادی چې په قهر او غصه نشې.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې کله له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو د تیر لوست ارزونه کوي وایي:<br>۱ـــ بیت الخلاء ته د ننوتو او راوتو دعاوې څوک ویلی شي؟<br>۲ـــ د اودس ماتي نور آداب څوک ویلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان معلومولو لپاره پوښتنه کوي مثلاً: مسلمان باید څنګه اخلاق ولري؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته د نوي لوست عنوان «د مسلمان اخلاق» په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست ټوټه ټوټه ولولي او دی یې غلطۍ ور اصلاح کوي. وروسته په څو تنو دغه کلمې: بشپړ، اخلاق، اطاعت، غیبت، دروغ، کنځلې او داسې نور د املا په توګه په زده کوونکو باندې لیکي څو په املا روږدي شي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته زده کوونکي په اوو ډلو ویشي او هرې ډلې ته یو یو ادب ورکوي څو د هغو په هکله یو له بل څخه پوښتنې وکړي او په پای کې یې ښوونکی نتیجه بیانوي او د دوی ځوابونه اصلاح کوي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته بیانوي:<br>پیغمبرﷺ فرمایي: (انی بعثت لاتمم مکارم الاخلاق) زه د اخلاقو د بشپړولو لپاره پیغمبر شوی یم. مسلمان چې ځان دده امتي ګڼي باید د ښو اخلاقو څخه کار واخلي او هیڅکله داسې کړه وړه ترسره نکړي چې د مسلمان زړه پرې آزار شي او یا کوم مسلمان توهین کړي، په ځانګړې توګه د مور او پلار، ښوونکي، خپلو خپلوانو، ګاونډیانو او ټولو مسلمانانو سره د اخلاقو څخه کار واخلي، له بدو لفظونو، کنځلو، جاسوسۍ، غیبت او نورو ناوړو چارو څخه لاس په سر شي. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ ایا پیغمبرﷺ د اخلاقو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ـــ د اخلاقو څو نمونې ذکر کړئ؟<br>۳ـــ د مسلمان له اخلاقو څخه دادي.................................<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. او د کتاب ارزونه حل کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## يوديرشم: لوست

## عنوان: د مور او پلار حقوق

**مخ: ٦٧**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د مور او پلار حقونه پيژني.
- د مور او پلار حقونه اداء کړی شي.
- د مور او پلار د حقوقو په هکله د نبی کریمﷺ د مبارک حدیث مفهوم حفظ کړي.
- د مور او پلار د حقوقو څو نمونې وپیژني.

**د ځینو کلماتو معناوې:**

د خير کارونه: د ښیګڼې چارې

حقوق: د حق جمع ده

مینديې: مور ګانې

**اړينه پوهه:**

**د مور او پلار حقوق:**

د الاسراء سورت په ۲۳ــ ۲۴ آيتونو کې د خپلې بندګۍ او عبادت له امر وروسته پیوست د مور او پلار سره په نیکۍ او احسان کولو حکم کوي چې دا په خپله د مور او پلار په لوړ مقام او مرتبه دلالت کوي او ورپسې وايي هر کله چې مور او پلار دواړه يا يو له دوی څخه د بوډاتوب او ضعيفۍ عمر ته ورسېږي په داسې وخت کې بايد دوی ته داسې کلمه يا لفظ ونه ويل شي چې دوی پرې وځورېږي او يا پرې خفه شي ان تردې الله فرمايي: چې د (اُف) کلمه هم مه ورته وايئ.

د مور او پلار خدمت په ټولو حالتونو کې واجب دی، خو د بوډاتوب حالت کې دوی ډېر خدمت ته اړه لري.

الله تعالی له دوی سره د نیکې معاملې تعبير د مرغه د وزرونو له راټیټولو سره تشبیه کړیده ځکه کله چې مرغه خپل بچیان په غېږه کې رانیسي نو خپل وزرونه ورته ټیټوي.

او پر دې برسېره الله انسان ته امر کوي چې خپل مور او پلار ته داسې دعا هم کوئ: اې زما پالونکيه زما مور او پلار ته د خپل بې اندازې رحمت او شفقت په سیوري کې ځای ورکړې لکه څنګه چې دوی د ماشومتوب په حالت کې پر ما شفقت او مهرباني درلوده.

او په دعا کې دیته اشاره ده چې د مور او پلار خدمت او حقوق خو لکه څنګه چې ښايي هغسې څوک نشي اداء کولی نو بايد د الله څخه ورته د رحمت غوښتنه وکړي. او که د دوی په هکله څه تقصير او کوتاهي ورڅخه شوې وي نو الله په وروستي آيت کې فرمايي چې په هغه توبه وباسي نو الله توبه قبلوونکی دی او الله يې ګناهونه په خپل فضل او مهربانۍ سره ببښي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو ترسره کولو وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. لکه:<br>۱ـــ څوک ویلای شي چې پیغمبرﷺ د ښو اخلاقو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ـــ څوک د اخلاقو څو نمونې ذکر کولی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي مثلاً د مور او پلار سره باید څنګه چلند وشي؟<br>وروسته د نوي لوست عنوان «د مور او پلار حقوق» په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي څو لوست د ځانونو سره مطالعه کړي. وروسته لوست ټوټه ټوټه په زده کوونکو باندې لولي او دی یې غلطۍ اصلاح کوي که د زده کوونکو له لوستلو څخه ډاډمن نشي نو بیا لوست په خپله ورته تکراروي څو ټول زده کوونکي یې په لوستلو وتوانیږي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | بیا د لوست لنډیز ورته په دې توګه شرح کوي:<br>الله تعالی د خپل عبادت او حق څخه وروسته متصل د مور او پلار سره په ښه چلند او اخلاقو امر کړی دی.<br>پیغمبرﷺ هم فرمایلي دي: پرته له شکه اللهﷻ تاسو ته د خپلو میندو او پلرونو سره د نیکۍ او ښه چلند کولو نصیحت کړی دی.<br>مور او پلار دواړه ډېر حقوق لري خو په ځانګړې توګه د مور حقوق تر پلار نه ډېر دي. په یوه کتاب کې راځي چې کوم نفر خپله مور په کجاوه کې له یمن څخه حج ته راوړې وه او حج یې پرې اداء کړی ؤ بیا یې د حسن بصري رحمه الله څخه پوښتنه کړې وه چې ایا ما د مور حق اداء کړی دی؟ ده جناب ورته وفرمایل نه تا د هغې د هغه تکلیف حق هم نه دی اداء کړی کوم چې دې ستا په زېږیدلو زغملی دی. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـــ د مور او پلار د حقوقو په هکله نبی کریمﷺ څه فرمایلي دي؟<br>۲ـــ د مور او پلار سره ښه چلند ولې ضروري دی؟<br>۳ـــ د مور او پلار د حقوقو څو بېلګې ووایئ؟ | ځوابونه وایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د درسي کتاب ارزونه دې حل کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دوه دیرشم: لوست

## عنوان: د ښوونکي په وړاندې ادب او چلند

**مخ: ٦٩**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د لوست کلمات هجا کړی شي.
- وپوهېږي چې ښوونکی معنوي پلار دی.
- پوه شي چې ښوونکی د پیغمبر دنده ترسره کوي.
- د ښوونکي نصحیتونو ته غوږ ونیسي.
- د دغه حدیث: (إنما بُعِثْتُ مُعَلِّمًا) په مفهوم وپوهېږي.

**د ځینو کلمو معناوې:**

په تحقیق: په رښتیا، بې له شکه

بهر: بیرون

ستونزه: مشکل

په څېر: په شان، په بڼه

**اړینه پوهه:**

**د ښوونکي ادب:**

د ښوونکی په هکله نبی کریمﷺ فرمایي: «إنما بُعِثْتُ مُعَلِّمًا» یعنې زه د ښوونکي په توګه رالېږل شوی یم. نو کله چې د ښوونکي او پیغمبر دنده سره برابره ده نو باید د ښوونکي احترام او درناوی وکوو. او د اسلام سپیڅلی دین ښوونکي ته د معنوي پلار حیثیت ورکوي.

او له حضرت جابرؓ څخه روایت دی وایي: رسول اللهﷺ فرمایلي دي: (معلِّمُ الخیرِ یستغفرُ لَهُ کلُّ شيءٍ حتَّی الحیتانُ في البحارِ).

ژباړه: د خیر او ښېګنې ښوونکي لپاره هر څه بخښنه غواړي ان تر دې چې کبان په بحرونو کې هم ورته دعا کوي.

په بل حدیث کې ابوامامهؓ د رسول اللهﷺ څخه روایت کوي وایي: (إنَّ اللهَ و ملائکته، حَتَّی النَمْلَةَ فِي جُحْرِها، وَ حَتَّی الْحُوتَ فِي البَحْرِ، لَیُصلُّون عَلَی مُعَلِّمِ النَّاسِ الْخَیْرَ).

ژباړه: پرته له شکه الله او د الله پرښتې حتی میږیان په سوړو او کبان په بحر کې د خلکو د خیر او ښېګنې په ښوونکي درودونه او رحمتونه وایي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو د تیر لوست ارزونه کوي. مثلاً:<br>۱ــ د مور او پلار د حقوقو په هکله د کوم حدیث مفهوم څوک ویلای شي؟<br>۲ــ د مور او پلار د حقوقو څو بېلګې څوک ذکر کولی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي. لکه: آیا پوهېږئ چې معنوي پلار څوک دی؟<br>له دې څخه وروسته د نوي لوست عنوان «د ښوونکي په وړاندې ادب او چلند» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز لولي او زده کوونکي یې ورپسې بدرګه کوي، وروسته بیا په یوه یوه زده کوونکي باندې ټوټه ټوټه لوست لولي او مرسته ورسره کوي، ځیني کلمې ورته هجاء کوي هم. | |
| ۱۰ دقیقې | بیا زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د لوست په هکله پوښتنې وکړي او ښوونکی ورته په موسکۍ بڼه ځوابونه وایي. بیا زده کوونکي په څو ډلو ویشي څو له یو او بل څخه د لوست په هکله پوښتنې وکړي.<br>ښوونکی د پوښتنو ځوابونه له ځان سره یاداشت کوي او بیا په پای کې ورته نتیجه بیانوي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته شرح کوي: | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | نبی کریمﷺ فرمایي: (انما بعثت معلماً) یعنې زه د ښوونکي په توګه رالېږل شوی یم. نو څرګنده شوه چې د ښوونکي دنده د پیغمبر دنده ده، ښوونکی معنوي پلار دی، باید د ښوونکي سره ښه چلند وکړو او همیشه یې درناوي او احترام وساتو، ځکه ښوونکی زموږ د روح پالنه کوي او پلار د بدن، روح له بدن څخه غوره او مهم دی ځکه په بدن کې چې روح نه وي بدن هیڅ نشي کولای او مړ شمیرل کېږي باید د ښوونکي ټولو نصیحتونو ته غوږ ونیسو او قبول یې کړو.<br>**ارزونه:**<br>۱ــ رسول اللهﷺ د ښوونکي په هلکه څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ ښوونکی ولې معنوي پلار ګڼل کېږي؟<br>۳ــ د ښوونکي سره د ښه چلند څو بېلګې ذکر کړئ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د درسي کتاب ارزونه حل کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## دري دېرشم: لوست

## عنوان: د خپلوانو سره چلند

**مخ: ۷۱**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست په سمه توګه ولوستلي شي.
- د خپلوانو حقوق وپيژني او ادايې کړي.
- وپوهېږي چې خپلولي پالل په روزۍ او عمر کې برکت اچوي.
- د خپلوانو سره ښه چلند وکوي.
- د هغو خلکو سره چې دوی صله رحمي او خپلوي پرې کوي، خپلولي وپالي.
- وپوهېږي چې صله رحمي د الله له نامه (رحمن او رحيم) څخه مشتق (اخستل) شوې ده.

**د ځينو کلمو معناوې:**

صله رحمي: خپلولي

طريقه: لار، کړنلاره

ضرر: تاوان، زيان

**اړينه پوهه:**

**د خپلوانو سره چلند:**

الله تعالی فرمايي: (وءات ذا القربی حقه) يعنې خپلوانو حق پوره ورکړئ او په آيت کې خپلوان په نورو مسکينانو او مسافرانو مخکې شوي ځکه د دوی سره نيکي او احسان هم صله رحمي ده هم صدقه.

بل ځای الله فرمايي: (...وَيَقْطَعُونَ مَآ أَمَرَ اللّهُ بِهِ أَن يُوصَلَ وَيُفْسِدُونَ فِي الأَرْضِ أُوْلَئِكَ لَهُمُ اللَّعْنَةُ وَلَهُمْ سُوءُ الدَّارِ). يعنې کوم کسان چې هغه خپلولي پرې کوي چې الله يې امر په وصل سره کړی دی او په ځمکه کې فساد کوي په دې کسانو الله لعنت ويلی دی او بده پايله به يې وي.

له ابوهره‌ﷺ څخه روايت دی وايي رسول اللهﷺ وفرمايل: (مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ باللهِ وَاليَومِ الآخِرِ،فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ) يعنې څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ايمان لري نو خپله صله رحمي (خپلولي) دې پيوسته کړي.

حضرت عائشة رضي الله عنها وايي چې رسول اللهﷺ وفرمايل: (الرَّحِمُ مُعلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ، تقولُ: من وَصَلَني وَصَلَهُ اللهُ، ومَنْ قَطَعَني قَطَعَهُ اللهُ). متفق عليه.

صله رحمي (خپلولي) په عرش پورې ځوړنده ده وايي څوک چې ما وصل کوي (پالي مې) الله به هغه وپالي او څوک چې ما پرې کوي الله به هغه پرې کاندي (د خپل رحمت څخه).

حضرت جبير بن مطعم‌ﷺ د نبي کريمﷺ څخه روايت کوي چې فرمايل يې: (لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعُ رَحِمٍ) يعنې صله رحمي پرېکوونکی جنت ته نشي داخلېدای.

له عبدالرحمن بن عوف‌ﷺ څخه روايت دی وايي ما د رسول اللهﷺ څخه اوريدلي چې ويل يې (قَالَ اللهُ تَبَارَکَ وَتَعالی: أنَا الرحمنُ أنا خَلَقْتُ الرحمَ، و شققتَ لها اسمًا منَ اسمِي، فمنْ وَصَلَها وصَلْتُهُ، و منْ قَطَعَها قَطَعْتُهُ، و مَنْ بَتَّهَا بَتَتُّهُ (قطعته من رحمتی).

يعنې: الله تعالی فرمايي زه الله يم او زه رحمن ذات يم، ما صله رحمي پيداکړې او د خپل نامه څخه مې چې (رحمن) دی (الرحم) مشتق کړی دی نو څوک چې دا صله رحمي (خپلولي) پالي او پيوسته کوي يې زه به هغه سره يوځای کړم او څوک يې چې پرې کوي هغه به زه سره پرې کړم (له خپل رحمت څخه به يې محروم کړم). له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی وايي چې يو تن نبی کريمﷺ ته راغی ويې ويل: يا رسول الله زه د لويې ګناه مرتکب شوی يم ايا ماته توبه شته؟ نبی کريمﷺ وفرمايل ايا مور دې شته سړي وويل نه، نبی کريمﷺ وفرمايل: ايا خاله دې شته؟ ويې ويل بلې، نو رسول اللهﷺ

ورته وویل د هغې سره نیکي کوه (توبه دې همداده). وايي یوه تن رسول اللهﷺ وفرمایل: زه خپلوان لرم چې همیشه ورسره خپلولي پالم خو هغوی زما سره خپلولي پرې کوي، زه نیکي ورسره کوم او دوی زما سره بدي کوي، زه د هغوی په وړاندې له حوصلې او نرمۍ څخه کار اخلم اما دوی را سره جاهلانه چلند کوي. نبی کریمﷺ ورته وفرمایل که داسې وي لکه چې ته وایې نو ګواکي ته ګرمې ایرې په دوی خورې (دوی ګنهګاربږي) او ترڅو چې همداسې چلند ورسره کوې نو همیشه به دې الله وربانديې برلاسی کوي.

همدارنګه له حضرت انسﷺ څخه روایت دی وايي رسول اللهﷺ وفرمایل: (مَنْ أَحَبَّ أَنَّ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ) یعنې څوک چې په خپله روزۍ کې برکت خوښوي او په خپل عمر کې اوږدوالی، نو هغه دې خپلولي پالي، د عمر د اوږدوالي څخه په عمر کې برکت مراد دی د الله په اطاعت کې د توفیق په سبب او د داسې کارونو په انجامولو چې هغه الله ته نږدې کوي، هغه هم د معلق اجل په نسبت پرته له دې چې په مطلق اجل کې څه تغیر رامنځ ته شي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
|---|---|---|
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو او موضوع ګانو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي. لکه: | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | ۱ــ څوک ویلای شي چې رسول اللهﷺ د ښوونکي د حقوقو په باره کې څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د ښوونکي سره د ښه چلند څو نمونې ذکر کړئ؟<br>۳ــ ښوونکی ولې معنوي پلار ګڼل کېږي؟<br>له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي وایي: که غواړئ چې په روزۍ او عمر کې مو برکت راشي څه کول پکار دي؟<br>له ځواب اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «د خپلوانو سره چلند» په تخته لیکي او له زده کوونکو څخه غواړي څوک لوست د کتاب له مخې لوستلی شي؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | بیا لوست په څو زده کوونکو لولي او دی یې ورته شرح کوي. وروسته یو یو زده کوونکی د تختې مخې ته راغواړي او د لوست یوه یوه کلمه وربانديې په تخته لیکي څو د املاء سره بلد او روږدي شي.<br>بیا لوست ورته په لنډه توګه شرح کوي:<br>د خپلوانو سره ښه چلند په روزۍ او عمر کې برکت اچوي باید د خپلوانو سره ښه چلند وکوو او الله هم امر کړئ چې صله رحمي وپالی او صله رحمي یې د خپل نامه (رحمان او رحیم) څخه مشتق کړې ده یعنې د خپل نامه څخه یې اخستې ده. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ رسول اللهﷺ د صله رحمۍ (خپلولي پاللو) په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د خپلولۍ پاللو څو بیلګې ذکر کړئ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي باید لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. او دغه کلمات: مینه، بیلتون، خپلولي، صله رحمي په جملو کې استعمال کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## څلور دېرشم: لوست

## عنوان: د چاپېریال پاکوالی

**مخ: ۷۳**

**وخت یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په سمه توګه ولوستلی شي.
- د چاپېریال د پاکوالي په هکله د حدیث شریف مفهوم زده کړای شي.
- د چاپېریال د پاکوالي په خاطر د سپرلي په موسم کې نیالګي کینوي.
- وپوهېږي چې ونې، ګلان، بوټي او سبزیجات چاپېریال پاکوي.
- په دې پوه شي چې د چاپېریال پاکوالی د ناروغیو مخنیوی کوي.
- د چاپېریال په شنه والي او تازه والي کې هڅه او زیار وباسي.

**د ځینو کلمو معناوې:**

هڅه: زیار او کوښښ

مکلف: تکلیف منونکی

**اړینه پوهه:**

**د محیط پاکوالی:**

الله تعالی انسان له خاورو پیداکړ او په هغه کې یې روح وپوکله، نو د انسان اصل او د ژوند پدیدې د ځمکې او خاورې څخه دي او خاوره د ځمکې یوه برخه ده. او الله پاک ټول موجودات او کاینات په چاپېریال کې د انسان لپاره پیداکړي او انسان یې په دې مکلف کړی چې سمه استفاده ترې وکړي او د اسلام په مقدس دین کې درې شیان مطلوب دي:

۱ــ داچې د ټولو هغو منابعو او پانګو په وړاندې چې الله تعالی د ځمکې په خیټه او د بحرونو په منځ کې د انسان لپاره پیداکړي دي ددې شکریه اداء کړي.

۲ــ ددې منابعو څخه انسان سنجول شوې او له اسراف پرته ګټه واخلي.

۳ــ او ددې منابعو او پانګو څخه په ګټه اخستلو کې هغه نظافت مراعات کړي کوم چې شریعت ته مطلوب او د ایمان جزء دی.

کله چې انسان له دې منابعو او پانګو څخه چې الله پیداکړې معقوله ګټه وانخلي نو د اسراف سره به مخ شي او اسراف حرام دی.

او که د طبعي منابعو څخه معقوله او منطقي ګټه واخیستل شي او د ژوندانه د چاپېریال سره څنګه چې لازم ده هسې چلند وشي نو هیڅکله به محیط په چټلیو ککړ نشي.

لنډه داچې موږ باید نیالګي کینوو، سبزیجات وکرو او خپل محیط پاک وساتو، کثافات او چټلی په خپل ځای کې واچوو، اوبه بېځایه مصرف نکړو، ونو او پارکونو ته پاملرنه وکړو او له ماتولو او سوځولو څخه یې ډډه وکړو او داسې نور......

د محیط او چاپېریال په پاکوالي کې دغه یو حدیث شریف کفایت کوي چې نبی کریمﷺ فرمایي که قیامت برپا ؤ او د چا په لاس کې نیالګي ؤ بیا هم باید هغه کینوي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ٥ دقیقې | ښاغلی ښوونکی چې کله له مقدماتي چارو څخه وزګار شي نو د تېر لوست په هکله زده کوونکي ارزوي. مثلاً:<br>١ــ څوک ویلای شي چې رسول اللهﷺ د خپلولۍ پاللو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>٢ــ د خپلولۍ پاللو څو بېلګې څوک ویلی شي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي.<br>په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ٢٥ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان معلومولو په هکله پوښتنه کوي مثلاً: ایا فردي پاکوالی ضروري دی یا د چاپېریال او ټولنې؟<br>له ځواب اوریدلو څخه وروسته د نوي لوست عنوان «د ژوندانه د چاپېریال پاکوالی» په تخته لیکي او زده کوونکو ته دنده ورکوي چې لوست له خانونو سره مطالعه کړي.<br>وروسته لوست په څو تنو زده کوونکو لږ لږ لولي او دی یې ورته شرح کوي بیا له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي: څوک ټول لوست د کتاب له مخې لوستلای شي؟ کله چې ښه ډاډمن او مطمئن شو نو بیا لوست ورته | |
| ١٠ دقیقې | خلاصه کوي په دې ډول:<br>پیغمبرﷺ امر کړی دی چې خپل چاپېریال پاک وساتو، او چاپېریال په دې پاکېږي چې نیالګي کینوو، سبزیجات، ګلونه او چمنونه وکرو او همیشه دا شیان خړوبه کړو، چټلۍ په خپلو ځانګړو ځایونو کې واچوو څو زموږ چاپېریال پاک او سوتره شي. کله چې چاپېریال پاک شي نو مرضونه په خپله کمېږي باروي او خوشحالي رامنځ ته کېږي. | لنډيز ته غوږ نیسي. |
| ٥ دقیقې | **ارزونه:**<br>١ــ نبي کریمﷺ د چاپېریال پاک ساتلو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>٢ــ د چاپېریال پاک ساتلو لپاره څه باید وکړو؟<br>٣ــ د چاپېریال پاک ساتل څه ګټې لري؟ | ځوابونه ووایي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>ښوونکی زده کوونکو ته دنده ورکوي څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي، د کتاب ارزونه حل کړي او دغه کلمې: قطی، ټوکرۍ چاپېریال، ګلونه او میوه په جملو کې استعمال کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## پنځه دېرشم: لوست

## عنوان: د ژوو سره چلند

**مخ: ۷۵**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- په ژوو رحم وکړي نه ظلم.
- وپوهېږي چې د ژوو جنګول او هغوی ته ضرر رسول منع دي.
- پوهېږي چې د ضرر رسوونکو ژوو وژل روا دي.
- په بار وړونکو ژوو تر توان زیات بار وانه چوي.

**د ځېنو کلمو معناوې:**

ژوي: حیوانات، څاروي

بوس: واښه، پروړ

**اړینه پوهه:**

**د ژوو سره چلند:**

د اسلام سپیڅلی دین د رحمت او نرمۍ دین دی، په اسلام کې د ټولو مخلوقاتو حقوقو ته پاملرنه شویده ان تردې په اسلام کې د حیواناتو سره هم د ښه چلند امر شوی دی. او د اسلام پیغمبر ﷺ ته رحمت للعلمین لقب ورکړی شوی. الله فرمایي: « وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ».

نو نبي کریمﷺ د جبرئیل امین علیه السلام لپاره هم رحمت دی، وایي جبرئیل امین علیه السلام هم د خپل عاقبت او پایلې څخه ویریده تر دې چې په محمدﷺ باندې دغه آیت « ذِي قُوَّةٍ عِندَ ذِي الْعَرْشِ مَكِينٍ» التکویر ـــ نازل شو نو جبرئیل امین ډاډمن شو.

ځکه په دې آیت کې څرګنده شوه چې جبرئیل امین د عرش د خاوند په وړاندې د لوېې مرتبې خاوند دی.

او په حدیث کې راځي: کوم مسلمان چې څه کښت کوي یا کوم نیالګي کینوي او بیا له هغو څخه مرغه، انسان او یا څاروي څه خوري نو د هغه لپاره صدقه ده.

او د هغې ښځې قصه خو به مو اورېدلې وي چې پشکه یې بندي کړې وه او خوراک او څښاک یې نه ورکاوه او آزادوله یې هم نه څو د ځمکې له حشراتو څخه ګټه واخلي. او بالآخره هغه پشۍ مړه شوه او د هغې له امله هغه ښځه دوزخ ته ولاړه.

او د هغه سړي قصه خو به مو هم اورېدلې وي چې هغه تږی سپی یې اوبه کړ چې د ډېرې تندې له امله یې لمده ځمکه څټله نو هغه سړی په څا کې کوز شو خپله موزه یې له اوبو ډکه او په خوله کې یې نیولې راوایستله او سپي یې پرې اوبه کړ نو الله ورڅخه خوشحاله شو او ښښنه یې ورته وکړه.

او نبی کریمﷺ داسې امر هم کړی دی، کوم ښکار ته چې مو د خوړلو اراده نه وي هغه مه ښکار کوئ.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو: (سلام اچولو، حال احوال او روغبړ کولو، حاضري کتلو، ټولګي تنظیمولو او کورنۍ دندې کتلو او ملاحظه کولو) څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي په دې ډول: | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | ۱ــ څوک ویلای شي چې د چاپېریال پاک ساتلو په هکله نبي کریمﷺ څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ څوک ویلای شي د چاپېریال پاک ساتلو لپاره څه وکړو؟<br>۳ــ د چاپېریال پاک ساتل څه ګټې لري؟<br>له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان ټاکلو لپاره پوښتنه کوي ایا پوهېږئ ولې پیغمبرﷺ ته رحمة للعلمین ویل شوي دي؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | له دې څخه وروسته د نوي لوست عنوان «له ژوو سره چلند» پر تخته لیکي او بیا د لوست په ویلو پیل کوي، لوست په لوړ آواز وایي، زده کوونکي یې ورپسې تکراروي، وروسته د لوست سختې کلمې ورته شرح کوي او بیا له یوه یوه زده کوونکي څخه غواړي څو لوست لږ لږ ولولي، بیا څو زده کوونکي یو یو تختې ته راغوړي او د لوست ځینې کلمې لکه: چلند، پیغمبر، بوس، موږک، لیوه او داسې نورې د املا په توګه پرې لیکي.<br>وروسته د لوست لنډیز ورته وایي:<br>پیغمبرﷺ د حیواناتو او ځارویو سره د ښه چلند امر کړی دی باید د دوی سره مهربان واوسو، په حیواناتو رحم وکړو وږي او تږي یې نکړو، په بار وړونکو حیواناتو تر توان زیات بوج بار نکړو. په ټولو حیواناتو رحم په کار دی پرته له مضرو شیانو لکه مار، لړم، موږک، لیوه او داسې نور چې د دوی مرګ روا دی.<br>نبي کریمﷺ ته له همدې وجې رحمة للعلمین ویل شوی چې هغه د هر شي حق بیان کړی دی او ان تر دې فرمایي چې په حیواناتو لعنت مه وایئ او هم فرمایي کوم مرغه ته چې د خوړلو اراده نه لرئ هغه مه ښکار کوئ. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ نبي کریمﷺ د ژوو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د حیواناتو سره د ښه چلند څو بېلګې بیان کړئ؟<br><br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي. او د کتاب ارزونه دې حل کړي. | ځوابونه وایي.<br><br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |

**شپږ دېرشم: لوست**

## عنوان: «پاکوالی»

**مخ: ۷۷**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د پاکوالي په ارزښت وپوهېږي.
- پاکوالي ته پاملرنه وکړي.
- د پاکوالي ګټې ورته معلومې شي.
- وپوهېږي چې پاکوالی د ایمان څانګه ده.

**د ځینو کلمو معناوې:**

بنسټ: تهداب، اساس

خیرن: چټل، ناولی

**اړینه پوهه:**

**پاکوالی:**

نبي کریمﷺ فرمایلي دي: (تَنَظَّفُوا بکلِّ ما استطعتم، فإن اللّٰہ بَنَی الإسلامَ علی النظَافَةِ، وَلَن یَدْخُلَ الجَنَةَ إلا کُلُّ نَظِیْفٍ).

یعني: څومره چې مو وس وي نظافت مراعات کړئ، ځکه الله تعالی د اسلام سپیڅلی دین په نظافت او پاکوالي بنا کړی دی، او جنت ته له پاک او سپیڅلي پرته نور څوک نشي داخلیدلی. پاکوالی او نظافت عام دی که معنوي وي لکه د شرک، کفر او ګناهونو څخه پاک اوسیدل. او که ظاهري وي لکه د ځان، جامو، ځای، کور، چاپېریال او نورو.... پاکوالی.

په بل حدیث شریف کې راځي: (إنَّ اللَّهَ طَیِّبٌ یحبُّ الطَّیِّبَ نظیفٌ یحبُّ النَّظافةَ کریمٌ یحبُّ الکرَمَ جوادٌ یحبُّ الجودَ).

یعني الله تعالی پاک دی، نظیف دی نظافت او پاکوالی خوښوي، عزتمن دی عزت خوښوي، سخي دی سخا خوښوي.

په بل حدیث کې راځي: (إِنَّ اللّٰهَ جَمِیلٌ یُحِبُّ الْجَمَالَ وَیُحِبُّ أَنْ یَرَی نِعْمَتَهُ عَلَی عَبْدِهِ وَیُبْغِضُ الْبُؤْسَ وَالتَّبَاؤُس).

یعني: بیشکه الله تعالی ښایسته دی، ښایست خوښوي او دا خوښوي چې په خپل بنده باندې د خپل نعمت اثر وویني او د ممسک والي او بخل نه نفرت کوي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً:<br>۱ـــ څوک ویلای شي چې نبی کریمﷺ د څارویو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ـــ د څارویو سره د ښه چلند په اړه څو بیلګې ذکر کړئ؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي.<br>مثلاً: پاکوالی په اسلام کې څه مرتبه لري؟ | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |

| وخت | فعالیتونه | ارزونه |
|---|---|---|
| ۱۰ دقیقې | له دې وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «پاکوالی» په تخته لیکي او بیا له زده کوونکو څخه غواړي چې لوست د ځانونو سره مطالعه کړي او ښوونکی د لوست ستونزمنې کلمې په تخته لیکي، وروسته لوست په لوړ آواز پیلوي او زده کوونکي یې پسې هم په لوړ آواز تکراروي له هغه وروسته ښوونکی په څو زده کوونکو لوست لږ لږ لولي څو ټول زده کوونکي یې ولوستلی شي. اما ضعیفو زده کوونکو ته ډېره توجه کوي.<br>وروسته لوست ورته خلاصه کوي:<br>پیغمبرﷺ فرمایلي دي (د اسلام دین د پاکوالی په بنسټ ولاړ دی) نظافت یې د ایمان جزء هم ګڼلی دی.<br>د نظافت او پاکوالي په مراعاتولو سره د ناروغیو څخه ساتنه منځ ته راځي. د ډوډۍ خوړلو په مهال باید خپل لاسونه پرېمینځو او له ډوډۍ وروسته هم ضروري دي. | لنډېز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ پیغمبرﷺ د پاکوالي په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ پاکوالی څه ګټې لري؟<br>۳ــ که موږ خپل بدن ونه وینځو څه بدې پایلې لري؟ | ځوابونه وايي. |
| | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د درسي کتاب ارزونه دې حل کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## اووه دېرشم: لمونځ

## عنوان: «بې ځایه خبرې کول»

**مخ: ۷۹**

**وخت: یو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي باید:**

- لوست د کتاب له مخې ولوستلی شي.
- بې ځایه خبرې ونکړي.
- د بې ځایه خبرو په زیان وپوهېږي.
- خبرې سنجول شوې وکوي.
- د ډېرو خبرو کولو څخه ډډه وکوي.

**اړینه پوهه:**

**بې ځایه خبرې کول:**

دا یو منلی حقیقت دی چې د بیان او خبرو کولو نعمت د الهي نعمتونو څخه یو ډېر عالي نعمت دی، یوازې ددې نعمت په واسطه د انسان او حیوان ترمنځ توپیر راځي.

د اسلام سپیڅلي دین د خبرو کولو لپاره څه اصول او ادبونه ښودلي دي چې باید مؤمن یې په کلکه پیروي وکړي څو خبرې او ژبه یې د الهي نعمتونو د شکرانې متضمنه وي نه داچې د الهي نعمتونو د کفران لامل شي.

د کوم مقصد او هدف لپاره چې خبرې کوو باید د هغه په ارزښت فکر وکړو او د هغه د ارزښت او اړتیا او د مجلس د غوښتنې مطابق خبرې وکوو. یا په بله وینا مؤمن باید سمه او رښتینې خبره چې په غوره پایلو مزینه وي، هغه وپیژني، د ځای او مجلس د ایجاب سره سمه سنجول شوې خبرې وکوي.

ډېرې خبرې د انسان وقار او عزت له منځه وړي او فکري توازن خرابوي. مسخرې، بابېزه خبرې، کنځل، عیب لګول، تور پورې کول، لعنت او دروغ ویل او داسې نور... د اسلام په مقدس دین کې هیڅ ځای نه لري او د مؤمن له شانه سره نه ښایي.

په حدیث شریف کې راځي: (سِبَابُ الْمُسْلِمِ فِسْقٌ) یعنې د مسلمان کنځلې کول فسق دی. په بل حدیث کې راځي: (لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ وَلاَ اللَّعَّانِ وَلاَ الْفَاحِشِ وَلاَ الْبَذِيءِ) یعنې مسلمان، عیب لګوونکی او لعنت ویونکی او بد ژبی او بدعمله نه وي. حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما وایي: د الله په وړاندې ترټولو ناوړه خلک هغه کسان دي چې په خلکو لعنت وايي او خلک عیبجنوي.

لنډه داچې مسلمان چې اشرف المخلوقات دی ښایي د خبرو او بیان د نعمت څخه داسې ګټه ترلاسه کړي چې سبا د قیامت په ورځ پرې نیولی او پښیمانه نه وي که کله ناکله وغولېږي باید فوراً توبه وباسي او د راتلونکې لپاره ټینګه ژمنه وکړي چې بیا به له حقې خبرې پرته بله خبره نه کوم، نبی کریمﷺ فرمایي: هره ورځ ټول غړي ژبې ته زارۍ کوي چې ته سمه چلېږه او که نه ستا له لاسه موږ هم تباه کېږو. هیله ده د لازیاتو معلوماتو لپاره د الحجرات سورت ۱۱ آیت ته مراجعه وشي.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً:<br>۱ــ څوک ویلای شي چې پیغمبرﷺ د پاکوالي په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ څوک ویلی شي پاکوالی څه ګټې لري؟<br>۳ــ که نظافت مراعات نکړو څه پیښېږي؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان په هکله پوښتنه کوي مثلاً آیا تر بیکاره خبرونه پټه خوله کیناستل غوره نه دي؟<br>له ځواب اوریدلو نه وروسته ښوونکی د نوي لوست عنوان «بې ځایه خبرې کول» په تخته لیکي. او لوست په لوړ غږ سره پیلوي، زده کوونکي یې هم ورپسې تکراروي.<br>وروسته لوست په یوه یوه تن ټوټه ټوټه وایي او ښوونکی یې ورته شرح کوي او ستونزمنې کلمې ورته معنا کوي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته زده کوونکو ته وخت ورکوي څو د بې ځایه خبرو په هکله یو د بل سره بحث وکړي او د بیځایه خبرو زیانونه یو بل ته په ګوته کړي.<br>وروسته ښوونکی د لوست لنډیز ورته وایي:<br>نبی کریمﷺ فرمایلي دي څوک چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان لري نو باید نیکې خبرې وکړي او یا پټه خوله واوسي.<br>مسلمان باید له بې معنا خبرو څخه ځان وژغوري ځکه د انسان سره لیکونکې پرښتې دي هغه هرڅه لیکي. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ــ نبی کریمﷺ د بې ځایه خبرو کولو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ــ د بیځایه خبرو کولو څو نمونې ذکر کړئ؟<br>۳ــ بیځایه خبرې کول ښه دي که پټه خوله اوسیدنه؟ | ځوابونه وایي. |
|  | **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د درسي کتاب ارزونه دې حل کړي. | کورنۍ دنده ترسره کوي. |

## اته دېرشم: لوست

## عنوان: د مسلمان خويونه

**مخ: ۸۱**

**وخت: يو درسي ساعت**

**موخې: زده کوونکي بايد:**

- لوست په ښه توګه ولوستلی شي.
- د ښو خويونو او بدو خويونو ترمنځ توپير وکړی شي.
- خپل ځانونه په ښو خويونو روږدي کړي.
- وپوهېږي چې کامل مسلمان هغه دی چې نور مسلمانان يې د ژبې او لاس له ضرر څخه په امن وي.
- وپوهېږي چې نيک خويونه عيناً ايمان دی.

**د ځينو کلمو معناوې:**

امن: ډاډينه

وعده: ژمنه

وفا: پوره والی، ترسره کول

غوسه: قهر

**اړينه پوهه:**

**د مسلمان خويونه:**

الله پاک فرمايي: (وَ إِنَّک لَعَلی خُلُقٍ عَظِیمٍ) [القلم:۴]. او يقيناً ته (اې پيغمبره) په لويو خويونو يې. نو موږ چې د پيغمبرﷺ امتيان او پيروان يو موږ هم بايد ښه خويونه خپل کړو او خپل زده کوونکي هم په ښو خويونو وروزو.

همدارنګه الله فرمايي: (....وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ) ال عمران ــ ۱۳۴.

يعنې: (متقيان) هغه کسان دي چې غوسه خوري او د نورو لنډپاري ښښي او داسې نيک خلک د الله ډېر خوښ دي.

په يوه حديث کې نبی کريمﷺ فرمايي: تقوی او نيک خويونه ډېر خلک جنت ته داخلوي او ژبه او شرمګا ډېر خلک د دوزخ ور ګرځوی.

همدارنګه نبی کريمﷺ فرمايلي دي: (إنَّ أَكْمَلَ المؤمنينَ إيمانًا أحْسنُهم خُلُقًا وخِيارُكُمْ خِيارُكُم لِنسَائِكُمْ) يعنې د ايمان له حيثه کاملترين مؤمنان هغه دي چې د ښو خويونو څښتن وي او غوره ستاسو هغه دي چې د خپلو بيبيانو سره غوره چلند کوي.

ابودرداءؓ وايي رسول اللهﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ د مؤمن په تله کې د ښو خويونو پرته درانه به هيڅ شي نه وي.

د نواس بن سمعانؓ څخه روايت دی وايي د رسول اللهﷺ څخه د نيکۍ او ګناه په هکله پوښتنه وشوه. دهﷺ وفرمايل: نيکي ښه خويونه دي او ګناه هغه ده چې په زړه کې ځای ونيسي او په شک او ترديد کې دې واچوي او زړه دې مطمئن نه وي او پر هغه د خلکو خبرتيا بده وګڼې.

| وخت | د ښوونکي فعالیت | د زده کوونکو فعالیتونه |
| --- | --- | --- |
| ۵ دقیقې | ښاغلی ښوونکی له مقدماتي چارو څخه وروسته د تیر لوست ارزونه کوي.<br>مثلاً:<br>۱ـ څوک ویلای شي چې نبی کریمﷺ د بیځایه خبرو کولو په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ـ د بې ځایه خبرو کولو څو نمونې ووایاست؟ | مقدماتي چارې ترسره کوي. |
| ۲۵ دقیقې | له ځوابونو اوریدلو وروسته ښوونکی د نوي لوست د عنوان معلومولو په هکله پوښتنه کوي. مثلاً: ایا دا متل مو اوریدلی چې: ښه خوی به دې سلطان کړي بدخوی به دې په ځان پورې حیران کړي.<br>له دې څخه وروسته د نوي لوست عنوان «د مسلمان خویونه» په تخته لیکي او لوست په لوړ آواز پیلوي، زده کوونکي یې هم په لوړ آواز ورپسې تکراروي او بیا ښوونکی لوست ورته شرح کوي او دوی غوږ ورته نیسي، له هغه وروسته لوست ټوټه ټوټه په یوه یوه زده کوونکي وایي، او ضعیفو زده کوونکو ته ډېره توجه کوي. | په لوست کې فعاله ونډه اخلي. |
| ۱۰ دقیقې | وروسته لوست ورته خلاصه کوي:<br>الله پاک نبی کریمﷺ ته فرمایي: (وانک لعلی خلق عظیم) یعنې پرته له شکه ته په ډېرو لوړو خویونو باندې یې. یعنې د لوړو خویونو خاوند یې، نو موږ چې ددې پیغمبر امتیان یو موږ هم باید په نیکو خویونو ځانونه سنبال کړو، مسلمانانو ته په ژبه او لاس سره ضررونه رسوو، تل رښتیا ووایو له دروغو، غولولو، وعده خلافۍ، ناشکرۍ او ټولو ناوړه خویونو څخه ډډه وکړو، خلکو ته په نیکو کارونو امر او له بدو کارونو یې منع کړو. | لنډیز ته غوږ نیسي. |
| ۵ دقیقې | **ارزونه:**<br>۱ـ نبي کریمﷺ د ښه خوی په هکله څه فرمایلي دي؟<br>۲ـ د ښو خویونو څو بیلګې ذکر کړئ؟<br>۳ـ د ناوړه خویو له ډلې څخه پنځه خویونه بیان کړئ؟<br>**کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده سپاري څو لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او د لوست د کتاب ارزونه حل کړي. | ځوابونه وایي.<br>کورنۍ دنده ترسره کوي. |